# کندهار



د کندهار میخانیکي ښوونځی

٥



ښاغلی عبدالهادی «داوی»

# چار ګل

داوي! څه ږدې به او ربل باندې قطار ګل
انسان ګله سې کېدای به د هر سنګار ګل
«خاموشي» او «اطاعت» د خپل مهره کړه
«تربیت د اولاد» ښه دی تر خروار ګل
«سر ښته د کور» هر کوره اوی هنر دی
اکتفا کړه ښایسته به دغه «چار ګل»

********************

شعر د مجارستانی «پتوفی»　　　　پښتو کوونکی «لایق»

# غروب

لمر لکه مېراوی ګل د مځکې اور ته
سر ایښوی او کښته کېږی بسې
ده له سره او طلائی جام څښه
ورو ورو د نور پانې تویېږی بسې
د دنیاګۍ له شوره د که ورځه
ورو ماښام هېږی او چوبېږی بسې
بدې ماښام کی د ناقوس شرنګهار
غوږ نه له لری را رسېږی بسې
له هغه لری ښایسته ستوری
لهای! آزاده وارسته ستوری

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

ا، م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعی څنګ ته

د ۱۳۴۱ لمریز کال د [اسد] میاشت
د ۱۹۶۲ میلادی کال د [اګست] «
ه دریم کال پنځمه ګڼه
پرله‌پسې ګڼه [۳۹]

ګالنۍ «بیه»
په کندهار کی [۲۸] افغانی
په دننه مملکت کی [۳۲] «
په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

## ددې ګڼې مضامین

# د مدنیت وسایل

مدنیت د بدویت ضد شمېرل کېږي. داځکه چې په بدویت کې انفرادیت غالب او په مدنیت کې ټولنه او تجمع برته ده. موږ د مدنیت و تاریخ ته یو معین وخت نه شو ټاکلای او نه ویلای شو چې په کوم وخت او زمان کې انسان په مدني ژوند پیل کړی دی خو د انسان د طبیعي تفسیاتو له مخې دا خبره څرګندېدلای شي له کومې نېټې څخه چې انسان په موجوده صورت ؤ هیولا سره د مځکې پر سر په ژوند پیل کړی دی له ده سره د فطري غوښتنې په اساس مدني تمایل ملګري وو داځکه چې انسان په یوازې توب سره نه ژوند کولای شي او نه دومره قدرت لري چې په یوازې سر د ژوندانه چارې بوره کړي همدغه د کمزورۍ احساس انسانان مجبور کړل چې یو له بله ژوند سره وکړي او د ژوندانه چارې په ګډ تعاون پرمخ بوزي، د دوی د همدې راټولېدو څخه، وطن، حقوق، اخلاق او انتظام پیدا شو او له همدې شیانو څخه مدنیت وزېږېده نو ځکه باید موږ د مدنیت داسې تعریف وکړو چې عبارت له هغو وسایلو څخه دی چې په انساني ژوند کې آرامي، هوساینه او تهذیب پیدا کوي او د ژوندانه سطح د ښه والي او سمون و خوا ته روانه وي او وروسته؟ وروسته ښایست او ښکلا هم زېږوي؛ څرنګه چې د انسان په لومړي سر کې د خپل فطري خواهش سره سم د کار او زحمت څخه منظور آرام ژوند کول دی، نو ځکه تل کوښښ کوي چې د کار او زیار په سیوري کې هغه وسایل او شیونه ایجاد کړي چې هغه ده ته فکري او مادي آرامتیا برابره کړي د همدې مفکورو او طبیعي سوابقو له مخې مدنیت زېږېدلی او پراخ شوی دی، خو دا خبره هم باید په یاد ولرو چې د پېړیو د تېرېدو او د زمانې د رژېدو سره سم د مدنیت وسایل هم زړېږي او خپله وظیفه په ښه شان سره نه سي اجراء کولای د مثال په ډول یو وخت د ټولنو په منځ کې د هغه وخت د ضرورت سره سم د تلو، راتلو او حمل ؤ نقل د پاره د کاروانــو او قافلو څخه استفاده کېدل او دا کار په خپل وخت کې د پرمختګ او د جامعې د اقتصادي او اجتماعي ژوند د پاره ښې خدمت کاوه. خو ننورځ د مدنیت دا وسیله ډېره زړه شوې او د انساني ژوند له ښېګڼې څخه وتلې ده داځکه چې د عصر اقتضا بدل شوې او په دې بدلون او اوښتنه کې د ژوندانه او مدنیت د ښېګړې وسایل هم بدل شوي دي د کاروانو ځای موټرو، ریلونو او الوتکو نیولی دی کومه ټولنه چې په دې عصر کې د مدنیت له دې شیانو څخه بې برخې وي د هغه مدني ژوند به هم نیمګړی او ډول ډول ستونزو سره به مخامخ وي.

په پخوانیو زمانو کې د انساني ژوند د بقا د لوی رکن زراعت څخه په خپلو مخصوصو آلاتو استفاده کېدله اما ننورځ دا د استفادې آلې ډېرې زړې شوې او له کاره لوېدلې دي که څه هم یو مخیزه لا باهېز او د استفادې څخه نه دي وتلي خو د وخت او زحمت په مقابل کې ئې ګټه ډېره ناچیزه او خورا لږ ده چې د زحمت دا محصول په دې عصر کې د جامعې د ضرورتونو پوره ښه نه شي کولای نو د ژوندانه د

استفادې هره وسیله چې د تولنې اړتیاوی اتشی بشیر کولای موږ هغه ته زوروراوله کاره لوېدلی وابو، ناسو یوه ماشین ته وګوریه چې له څه زمانې کار کولو وروسته د هغه پرزې هم زړېږی او خپله وظیفه په ښه توګه بیانه شی اجرا کولای، همدغه رنګه دتولنو په سیر او تحول کې د ژوندانه وسایل خپل ارزښت بایلی اود ایشېدو او تجدد استلزام کوی، یوه کسان او هوښیاری جـ امعې هغه دی چې د خپل اجتماعی ژوند حرکت او موقف پېژنی اود زمـانې د تېرېدو اود پېرېو داوښتلو سره سم د ژوانـدانه لوازم هم دعصر داقتضا سره نوی کوی او په لارو چارو کې هم د اجتماعی مصالحو دپاره بدلون اوتغیر راولی کومې تولنې چې دزمانې دې تغیر نابذیره قانون ته ښه نـه ځیر کېږی او خپل اجتماعی موقف ښه نه پېژنی هغه به تل دژوندانه په ډګر کې د خوار یو اوسختیو سره مخامخ وی

او د مدنی ژوند ودانیه بې نیمګړی وی عصر اوزمان نه یوازی دژوندانه زړې پرزې بدلوی بلکې په خپل ګړندی ودانـدې تګ او نویو اختراعاتو سره دژوندانه پخوانو او زړو کې داسې څرګند تحول راولی چې بېخی دارغوانی زمانې سره برته کېدای نه شی اوسنی عصر د ماشین تخنیک اوسایـنس عصر دی بېلـه دې شیونو څخه هیڅ هیواد نه ته مدنیت راتلای شی او نه پدې جنجالی دنیا کې ئې بېله دغو عناصرو له مرستې څخه ملی موجودیت ساتل کېدای شی، دافغان اوسنی نسل او تولنې ته په کار ده ترهغه ځایه پورې چې ددوی ملی کلتور ئې منلای شی باید دمدنیت ټول عصری وسایل ځـانته برابر کړی او هغه موانع چې د اجتماعی تـکامل مخه ئې نیولې ده هغه په زیار، پوهاوی او تعاون له منځه لیری کـړی .

ام، کرزی

---

شعر د روس دمشهور شاعر لرمانتوف
پښتو کوونکی «لائق»

# د ژوند جام

په پټو سترګو مو شونډان د ژوند په جام ایښې
د هیلو لار کې مو ګامونه ټول تمام ایښې

مو نېژه بېځایه تودې اوښکې تویوو ربـاندی
غمې د اوښکو مو د زړو په جام خـام ایښې

د مرګ شپېبه په زمونږ له سترګو پرده اری کاندی
وا به خلې ټول هغه چې مونږ ځانله تمام ایښې

ها وخت به یو شو چې د ژوند جام لا پخوا تش و
مونږ غولېدلی وو کـنه دې په رښتیا تش و

ښاغلی «پالوال»

# زموږ د پوهې وسایل

له دغه مهاله څخه چې بشر په ښه او بد یا خیر او شر، وجود او عدم، ماده او صورت، هیولی او روح، جوهر او عرض، کلي او جزئي، وحدت او کثرت، کیف او کم، معقول او محسوس، علت او معلول، فعل او انفعال، معلوم او مجهول، محمول او موضوع، مقدمه او نتیجه او نورو پوهېدلی دی، سره له دې هم په فکر کې ورګرځېدلی دی چې: دغه پوهه او زده کړه مې څرنګه او له کومې لارې څخه وموندله؟ که نې چیرې خطا او غلطي پکښې کړې وي، همداسې نې ري وهلی دی چې: ولې او له کوم پلوه څخه نېر ونه ؟.

د پورتنیو پوښتنو غبرګون و هر فکر کوونکي ته ډېر بدیهي دی، او ژر تر ژره لاس په لستوڼي له ځانه سره قضاوت کوي چې د داسې معلوماتو په حصول کې له دوو پلوو (عقل او حواسو) څخه کار اخستل کېږي. مګر که چیرې څوک پوله نوموړو دواړو څخه مطلقاً د علم مدرك وګڼي هغه په ښانې چې د کوم علت له مخې څخه وي، هغه چا نه اجازه نه ورکوي چې د دواړو قبول دې وکړي. مثلاً د متافزیکي موضوعاتو په خوا کې چې فکر کوونکي په مستقیم صورت سره او د فکر کولو په ترڅ کې د حواسو سره هیڅ اړه نلري ځکه نې نو د خپل ذهن پو ورنړلی او بې حواسو فعالیت پولی حسال دا چې ریښې او تنه نې محسوسات ور جوړوي، مګر ښاخونه نه تعقل. یا په نې علت د عقل او حواسو تر منځ د ترجیح او ښاوالي درجه وي، چې په پخوانیو کې نې زښته ډېر اهمیت درلود دی. ځکه چې دوی عقل تر حواسو ښه تره ګڼله، او علت نې هم داؤ چې حواس په هر چا کې مشترك وه مګر عقل مشترك نه، بلکه د شرفمورونی او برتندی کښېلی برخه وه. ددې مطلب د ښه ترا ترضیح له پاره دو نه و بل کېدلای شي چې حواس ګرده سره له چا څخه نه نفي کېږي په معنی نسو ویلای چې دغه [پلانی] پو بې حواسو سړی دی، ړوند دي پر ځای پاندې کېدلای شي چې د عقل نفي دې پوه ژر په کې ومنځ ته راشي، لکه داسې چې ویلای شو دغه [پلانکی] پو بې عقل وګړی دی، په معنی فکر داسې کولای، چې پدې صورت کې او د عقل او ډنوب و حواسو ته څرګندېږي. امادې په بر-خلافه ځینې بیا د عقل پر ځای پاندې و حواسو ته ترجیح ورکوي، او علت نې دادی چې وانې پوله حواسو څخه نه د شي فکر کېدلای شي او نه نې وجود اثبات مومي. همدا رنګه ځینې بیا د دواړو (عقل او حواسو) طرفداران دي.

اومړنیه دلې له د پ...ري پخوا زماني څخه داسې عقیده درلوده چې د روح، هیولی او نورو موجوداتو او واقعاتو پلټنې پوازې د خیال او تعقل له لارې څخه امکان لري. پس نو پدې خوا کې چې په نې هر څه د خپلې خوښې او میلې سره سم او په هره

نو کله چې به وه، صحیح او سم
ثابتول، مګر هغه څه چې به
بیا واقع او د حواسو له ادراك
سره مطابق وه، غلط او ناسم
بېژندل. له همدې پلوه به مشا-
هدې او تجربې کوم علمي
ارزښت او قیمت نه درلودی
بلکه د غلطیو منشاء به لا هم له
دې څخه انګېرله کېده، یعنې
حواس نه، اما هر څه چې وه
هغه ټول صرف تعقل ؤ.

هغه چا چې به دا سې مذهب
درلودی او بانې ئې اري، عقلیون
که به له دې څخه بر خلاف وه یا
وې، هغو ته بیا، مادیون، مګر
دا سې حسیون هم وه چې له
مادیونو څخه وتلي او په معنو-
یونو کې ئې ځای درلودی هغه
څوك چې بیا له نو موړو مذهبو
څخه مخالف او د حقیقت بر ځای
باندې ئې شبهه اصل ګڼله، شکا-
کان، ورته ویل کېږي.

د دې لپاره چې د عقل او حواسو
پېلوالی څه نه څه واضح کړای
سو، ښه به دا وي چې د ځینو
پخوانیو فلاسفو او افکار پدې
څوا کې په لنډی او مجمل ډول
سره راوړو، چې به هم د دوی
تر منځ اختلاف او هم به د تاریخ
او زمانې له مخې څه په یوه
موضوع کې د فکر کولو طرز
را معلوم کړه سي.

* * * *

پلاتو (۳۴۷-۴۲۷ ق م)

افلاطون عقیده اري چې علم د
انسان په وجود کې پټ پروت
دی، او تر دغه ژوندانه د مخه ئې
روح د مجردانو او معقولانو په
جهان کې ژوند کاوه او هغه ئې
ټول زده وه، مګر کله چې د
مجازي دنیا ته راغی او بند نن
کښېوته، ټول ئې هېر سوه
مګر نه په رمځ باندې چې له
همدې پلوه د شیانو او واقعاتو
له حقایقو څخه په لږ څه توجه
سره برخمن کېږي او علم
حاصلوي. ځکه نو دی وائي چې
محسوسات ټول له نش څرګند-
یدونی دي، چې متغیر او راز
راز حالات اري، یعنې متکثر
نسبي، فاني او په زمان او مکان
پورې مقید دي. ولې د دې په
برخلاف، معقولات حقایق دي
چې اصیل، مطلق، باقي، لا یتغیر
او په زمان و مکان پورې اړه
نلري، لکه چې وائي: محسوسات
د معقولاتو دا سې فرعه ده لکه
سیوری و خاوند ته.

بر هغه څه چې علم حاصلیږي
هغه عبارت له هغو مادي او معنوي
کلي امورو څخه دي، چې هغه
ټول له معقولات او له حواسو څخه
بالکل بې نیازه دي. څرنګه
چې دغه ټول په تعقل سره
حاصلیږي، او حس بیا د کلیاتو
سره نه بلکه د جزئیاتو سره اړه
اري چې هغه واړه عوارض او
اشکال دي، یعنې حقایق نه دي.

---

ارسطو (۳۸۴-۳۲۲ ق م)

ارسطو ذهن یوه سپینه لوحه
ګڼي چې معلومات د حواسو په
واسطه سره، هغه چې له تجربې
څخه د استعداد سره سم بر هغې
باندې کښل کېږي. خو د علم د
حصول په څوا کې د پلاتو سره
یو عقیده اري، چې بر جزئیاتو
باندې، یعنې هغه څه چې محسو
سات صورت نه نیسي، بلکه
اصل کلیات دي چې په تعقل سره
موندل کېږي. څرنګه چې په
دې څوا کې د استاد او شاګرد
نږدې یو مذهب دي مګر بیا هم
په وروسته کې پېلوالی پیدا
کوي، دا سې خو پلاتون معتقد
دی چې معقول مستقل خارجي
وجود اري، او ارسطو بیا دا سې
ادعا کوي چې معقولات او کلیات
یوازې په محسوساتو کې خارجي
وجود پیدا کوي، نه پېله دې څخه
حال دا چې استاد معقولات له

محسوساتو څخه پيل کېږي مطلب دا چې کليات او جزئيات سره جدا بولي، چې او ستري بې حقيقته او موهومي يې بولي. که څه هم شاګرد د نوموړي دواړو ترمنځ وفرق نه قايل دي مګر يوازې په ذهن کې، نه په خارج کې، ځکه چې محسوسات د معقولاتو مقدمه ګڼي او د کلياتو موندنه د جزئياتو په استقراء سره ميسره بولي.

فرانسس بېکن (١٥٦٠-١٦٢٥م) نوموړی د حواسو طرفدار دی او بدې خواکې بر بخوانيانو باندې، هغه څرک چې بېله حواسو ئې نش له عقله څخه کار اخيست انتقاد کوي او وائي چې د حقيقت کشف يوازې په نقل او د کلياتو څخه د جزئياتو په را ايستنه سره نه ميلاويږي. له همدې لوری څخه بايد په بله تو که سره په جزئياتو کې مطالعه وسي، څو د ترتيب، ترکيب او استقراء له مخې څخه کليات ځني حاصل کړه سي، چې د حقايقو موندنه ممکنه کړي ولې بېله دې څخه نقل او استدلال بې مأخذه او بې اساسه دی نو پداسې ترځ کې چې هر څه ځني مراد يږي او پسا راوزي

وار موهمي او [اونوبي] دي نه علمي او محقق، يعني د طبيعت له حقايقو سره بې اړه او واره زموږ ذهني مجهولات دي چې کوم واقعي او يوره سم ارزښت نه لري.

رنه دکارت (١٥٩٦-١٦٥٠) که څه هم نوموړی د مشاهدې او تجربې پرخوا دی مګر بيا هم عقل اصيل ګڼي او حواس ځني بېلوي، يعني پر ځای د دې چې د حواسو نه د عقل د ښت حيثيت ور کړي، وائي چې حس نېږ وزی او په علم کې د اعتبار وړ ئي نه ګرځېدلای، ځکه نسو د حقايقو د موندلو وسيله نه ګڼل کېږي. بلکه پر ځای باندې ئې بداهت، شهود، وجدان ساده بينښي او داسې نور ابتدائي امور د نقل ورونه او دروازې دي. سربېره پر بوړ نفيو ګرېښو باندې، د کارت داسې فکر هم لري چې ځيني معلومات او د حقايقو د ادراك څه څه برخې د انسان په نفس کې اخښلي سوې دي يعني فطري او عقلي خاصيت ئې دی.

سره له دې چې نوموړی تېروتنه له حواسو څخه بولي، يوبل راز عقلي غلطي او خطا نه هم قايل

دی چې هغه دارادې له مداخلې څخه په عقلي امورو کې بولي داسې چې زموږ عقل مقيد او محدود دی مګر اراده آزاده او نامحدوده ده. نو هر کله چې اراده په هغو کارو کې کم چې عقل په څرګند او بېله تو که سره ناوی درك کړي، داخليږي عقل په خطا کښېوزي.

مالبرانش (١٦٣٨-١٧١٥) نوموړی د هغو غلطيو په لار کې چې وانسان ته ورپه پېښه کېږي د پرمخ نه ځي او ورديې اندازې يوری ئې له حواسو څخه بولي څو وائي: د خطاؤ اصلي علت دا دی چې زموږ روح او عقل په تن کې اخته سوی او له همدغه پلوه څخه د احساساتو، تخيلاتو نفسياتو او د تمايلاتو د قوو درلودونکی سوی دی، ځکه نو همدغه تو له د خطاؤ لاری دي چې دروونه ئې پسر ذهن باندې وربرانستلي او د عقلي تېروتنو وسيله ګرځي. حال دا چې حواس وانسان ته د تن د محافظې له پاره دي مګر د خوشي د پوهنې او علم وسيله ګڼلي دي. انسان ځکه او هغه مهال تېر وزي چې دی د خپلو حواسو په ښو څرګندونو اعتماد وکړي

او هغه د موجوداتو حقايق وشميري، حال دا چې نوموړي د واقعاتو او شيانو هغه عرضي ښکاره کېدنې دي چې بېله ګڼنې کم حقيقت نلري.

بروخ سپينوزا (۱۶۳۲-۱۶۷۷)

نوموړی داسې فکر لري چې بايد علم پر بسيطو او لومړنيو شيانو باندې، هغه چې بديهي وي، په شهود سره صورت ونيسي ځکه چې هغه رڼه، روښانه او له معلومو سره برابر دي. يعنې د صحت واثبات اړتيا ئې ودباندنيو نخښو ته کومه اړتيا نشته. ولې چې جزئيات نه دي او په زمان او مکان پورې هم کمه اړيکه نلري، ځکه چې هغه سره او دي او د حقيقي علم موضوع نسي ګرځېدلای. په همدغه شانې هغه علم چې په شهود سره پر بسائطو باندې صورت نيسي کم انتزاعي امور او کليات هم نه دي، ځکه چې دغه حقيقت نلري بلکه د شيانو او پېښو ګډ صورتونه دي چې د توکو له ذهني تجمع څخه انسان عاجز دی يعنې نسي کولای چې دغو او موجوداتو مختلف صورتونه په ذهن کې راغونډ او پخپله مخيله قوه سره له هغو څخه انتزاعي او اجمالي صورتونه برابر کړي حقايق ئې وګڼي او کلي ورته ووائي. ولې خبره دا ده چې حقايق دي په تبر خلافه عبارت له هغو څرګندو او روڼو معلوماتو څخه دي چې وجدانيږي او تعقلي جنبه لري.

ګاتفريد ويلهلم لېبنيتز
(۱۶۴۶-۱۷۱۶)

نوموړی داسې فکر کوي چې انسان درې راز ادراکات لري چې يو ئې پټ، بل ئې څرګند او درېيم ئې د عقل له خوا څخه صورت مومي. پټ ادراکات عبارت له هغو احساسو څخه دي چې انسان نه ځني متنبه کېږي، يعنې د درک کولو تميز ئې نسي کولای بالابهام او بالقوه وي. مګر هغه چې څرګند او روښانه ادراکات دي، هغه داسې اخيستل کېږي چې څو توجه و ځانته ور واړوي يعنې متنبه بالفعله او ښکاره احساس ئې کېدلای سي، ولې دا په هغه ترځ کې چې پټ او ابهام ادراکات قوت ومومي او د څرګندو مستقيمو ادراکاتو و پوړ ته را پورته سي. مطلب دا چې څرګند ادراکات عبارت د نوموړو پټو ادراکاتو له ترتيب او ارتباطه څخه دي چې و سربېرن حالت ته ئې وبل کېږي. څرنګه چې وګړي نو د خپلو کړو او ادراکاتو په اصلي علت او سبب نه پوهيږي، اساسي وجه ئې هم دا ده چې دوی د خپلو پټو ادراکاتو څخه غافله او بېده پاته وي نو په هغه صورت کې چې دوی ئې احساس وکړي او څرګندو ادراکاتو و مرحلې ته ئې را ورسوي، په دې وخت کې عقل ارتباط قايموي او نتيجه اخلي.

توماس هابز (۱۵۸۸-۱۶۷۹)

هابس داسې فکر درلود چې واقعات يا موضوعات دوه ډوله اري، چې يوه خوا ئې په فلسفه او علم پورې اړه لري او بله خوا ئې نه پورې لري. کوم ډول چې فلسفه او علم سره کار ورسره اري، هغه يوازې دا چې امو ترکيب او تجزيه ده، چې دغه بيالکه څرنګه چې يوه بديهي موضوع ده، په ماده پورې اړه لري. دا دي هم له منځه وتلي نه وي چې د انسانانو خوبونه دودونه، روابط او نور داسې داسې علوم چې مدار ئې عمل وي پر حس او تجربه باندې ولاړ دي. دالاخره حتی د تفکر او تعقل اساسي بنسټ هم همدغه

حس دی .

هغه محسوسات چې له خارجه څخه ئې حاصلوو، زموږ په ذهن کې د حافظې لخوا څخه ساتل کېږي چې وروسته ئې جمع او تفریق کول زموږ فکر او تعقل جوړوي .

## ژان لاك (۱۶۳۲-۱۷۰٤)

نوموړی د خپل وخت د فلاسفه وو په برخلافه، په ذهن کې د معانیو او تصوراتو فطري والی ئې رد او لاندې کړ، او په خورا ځغرده سره ئې د هغو په مقابله کې داسې ومنله چې زموږ ټوله معلومات اکتسابي دي، ولې که چېري فطري وای باید همېشه زموږ په ذهن کې حاضر وای، او که ووایو چې فطري دي خو انسان څخه ئې انر نه دی، دا بوه داسې خبره ده چې بې معنی او تناقض لري. بل دا چې، که فطري وای نو به هرڅه معلومات درلودای او تحصیل ته به کوم حاجت پاته نه وای .

څینې فلاسفه چې دا انسان معلومات فطري، سره مشترك او د هغو که تصدیق ئې دلیل بولي لاك داسې عقیده ښکېلي ښر کندوي چې: وګوری له کوچنیوالي څخه د معلوماتو په اکتساب پیل او بیا له بله ئې سره زده کوي، چې له همدې یلوه څخه اکتساباً سره مشترك دي، نه فطرتاً. همدغه رنګه دا حتمي نه ده چې یوه جامعه په یو شي په ټولو تصدیقوي، بلکه داسې ډېر سربان سته چې ځینې وژي، مثلاً لکه یخپله لاك .

لنډه دا چې نوموړی هم ذهن سپینه لوحه ګڼلې او وائي چې معلومات د تجربې په واسطه سره سو که بلاندې ګټل کېږي چې دوه رازه دي: یو ئې احساساتي او له دباندېنیو شیانو څخه موندل کېږي، او بل ئې عبارت له دننیو مشاهداتو څخه دی چې په تفکر سره حاصلیږي وروسته بیا و دغو دواړو ته د عقل لخوا څخه پرورښت ور کول کېږي او کلي نتائج و لاس ته ځینې راځي .

## جارج بر کلي (۱۶۸۵-۱۷۵۳)

نوموړی داسې فکراری چې د انسان یوه د دوو موجوداتو تر منځ صورت نسي، چې یو ئې عبارت له ادراك کوونکي څخه دی چې روح دی او بل ئې عبارت له ادراك کېدونکي څخه دی چې بېله هغو تصوراتو څخه چې زموږ په ذهن کې د خارجي موجوداتو له بلوه، د حواسو په وسیله سره صورت نیسي کوم بل شی نه دی، یعنې د عوارضو موضوع اجسام دي چې تر ذهن دباندې کوم وجود نه لري، اماچېری چې بیا هم وجود لري، هغه زموږ د روحي تصوراتو مجموعه ده .

سرابېره پردې باندې بر کلي د موجوداتو په خوا کې داسې فکرارې چې، هغه څه چې ادرا کېږي وجود لري او کوم چې نه ادرا کېږي بې موجودیت ده دي یا تر دغه په پوره نه نوموړی داسې ښر ګندوي چې د موجوداتو ستهوالی زموږ د ذهن په مقابل کې دی او بېله دې څخه د موجودیت معنه څرنګه او ستهوالی ئې څه راز امکان لري ؟

## ایتن بونوت دو کندیاك (۱۷۱۵-۱۷۸۰)

کندیاك د ټولو ذهني شیانو څخه لاس اخلی او بیر ته ئې په داسې توګه رامنځلوي چې هغه پرحواسو باندې بنا کوي، یو حس چې د کوم شي څخه په وارو وارو تکرار وموي، زموږ په ذهن کې ځانې کېږي او د نورو شیانو له احساس سره ئې فرق

ومنځ ته راځي، چې دغه بیا به سو که، سو که شدت پیدا کوي ارتباط قائمیږي او د فکر و مرحلې ته ځان رسوي. کلمه چې د محسوساتو ترمنځ فرق او تشابه و منځ ته راسي، ذهن د هغو په شاوخوا کې د تصور تصدیق او د انتزاع د قوې درلودنکی کېږي. څو هم دا شان تعقل او استدلال.... پایه عمومي تیسو که سره یو هغه موندل کېږي.

---

ایمانویل کانت (۱۷۲٤-۱۸۰٤)
دی په ذهن کې د مخنیو او وروستنیو دوارو معلوماتو ته قایل دی. پداسې توګه، چې داسان زده کړه په څرګند ډول سره د حواسو له لارې څخه په تجربي توګه صورت نسي مګر ذهن پخپله هم معلومات اري او هغه باندې اضافه کوي ولې چې پېله دي څخه په یو هم هیڅ صورت و نه نیسي، او د نظري عقل له مخې څخه نسو کولای چې پر جواهرو او ذواتو باندې عام ولرو. یا تردې په پوره مطلق عقل نسي کولای چې و مطلق حقیقت ته دي ورسیږي بلکه هغه چې د علم د حصول د پاره کار ورکوي عبارت له حس او فهم څخه دي.

---

جارج ویلهلم فردریک هیګل
(۱۷۷۰-۱۸۳۱)

هیګل داسې فکر اسري چې محسوسات جزئیات دي او حقیقت نلري، هر څه چې محقق دي هغه معقولات دي او عبارت له کلیاتو څخه دي، چه د ذهن انتزاعي امور دي، او په زمان او مکان پورې اړه نلري مګر هغه څه چې په دوی پورې اړه اري هغه جزئیات دي، ولې چې پېله دي څخه ئې احساس نسي کېدلای، یعنې مستقل، اصیل او بالذات نه دي بلکه عرضي دي چې د عقلي وجود تابع یا فرعه ئې ده، اما اصیل او بالذات وجود هغه دي چې معقول او کلي وي.

---

ارتر شوپنهاور (۱۷۸۸-۱۸٦۰)
نوموړی د انسان د علم په حصول کې داسې وائي چې، احساسات پدې څوا کې مهم رول لوبوي مګر په یوازې والي سره نه، یعنې نسي کولای چې د موږ نه دي په بکړ صورت سره معلومات او وجدانیات را ورانډې کي بلکه څه چې کولای سي هغه یوازې د وجدان مساده او موضوع برابروي. نو سر بیره پردې باندې هغه څه چې پدې لار کې لوی کار کوي هغه فهم او عقل دی چې له احساساتو څخه معلومات او وجدانیات جوړوي څرنګه چې عقل او فهم ذهني دي نځکه نو داسې څرګندیږي چې ماده له ذهني ذات څخه ذهني ریښه لري. ولې بېښه داسې ده چې شوپنهاور عقل تر ارادې لاندې ایږدي او د هیڅ آلت ئې بولي.

---

جان ستوارت میل (۱۸۰٦-۱۸۷۳)
دی د علم په حصول کې د حس او تجربې پر خوا دی، چې له هغه دي پلوه څخه علم پر کلیاتو باندې هم و حس ته منسوبوي او وائي چې: و هغه څه نه چې د کلیاتو عقلي ادراک وائي، نه، بلکه د جزئي معلوماتو د معانیو تداعي ده چې و ذهن ته د متصرفه او متخیله قوې په کار کړه سره، د حس له لارې څخه ور تاصلیږي یعنې تعقل پېله د معانیو د جمعي او ترکیب څخه بل څه نه دي مګر پخپله هم د غه دوې قاعدې اري، یوه د مجاورت او بله د مشابهت، چې د دوی په توسط سره و یوې پېښې ته اوري اثر دي او ورته واقعات درک کوي. بیاهم ښاغلی میل علم تنها د حس

تجربې او د معاینو د تداعی د
قرې نتیجه بولی نه بل څه .

هنری برگسن (۱۸۵۹-۱۹۴۱)
نوموړی د محسوساتو او معقو-
لاتو په منځ کی د لومړنیو
برخوا دی او وائی چی ادراك
حسی دی نه عقلی . ځکه
کله چی موږ د یوې مادې
احساس کوو، هغه زموږ په نفس
کی تحول پېښوی، چی په
رشتیا هم معلومات ځنی را حاصل
او نفس ئې تر اغیزې لاندې
راځی . نو که چیری له واقعیته
سره سم او که نا سم وی، خو
حقیقتاً ئې مدرکات بللای سو .
علی الرغم بیا د کلیاتو ادراك
په تعقل سره زموږ په نفس
کی کوم تحول نه پېښوی، نو
له همدې پلوه څخه ویلای سو
چی عقل د کلیاتو ادراك نه
کوی، بلکه هغه ئې تجریدی
او انتزاعی مجهولات دی .
څرنګه چی تصورات هم د ذهن
مصنوع دی؛ ځکه نو له دوی
څخه تصدیقات او له دغو څخه
بیا قضایاوی، چی عقل پر هغو
باندی حکم کوی او په همدې
توګه سره دلایل او براهینونه
چی د احکامو دپاره ئې راوړی
په حقیقت کی ادراك، په هغه
معنی چی راوړه سویدی نه دی
ځکه چی نفس ئې مستقیماً
نه سی درك کولای .
برگسن وروسته ځان و خپل
دې مقصد ته رسوی چی عقل د
ژوندانه لپاره دی نه د کلیاتو
او مطلقو حقایقو د درك
لپاره .

* * * *

تر دې ځایه پوری مو دزده کړی
یا د پوهنې د چوپړ په خوا
کی د ځینو فیلسوفو گڼنې
هغه چی زموږ د مقصد پورا پنه
په کېږی، په مجمل ډول سره
ولوستلې، څرنګه چی په عمومی
توګه په ئې موضوع هم روښانه
کړې وی . مګر بیا هم څرنګه
چی د دوی نظریات مسلسل
کړی او مفاهیم پکښې سره
ګېډوډ سویدی، ځکه به
ئې نو ادراك او فهم ونه څه
نه څه گران سوی وی .
[دغوني]

د پوهانو بخې خبری

## دانسان ښایست کار دی

کار و کړی، کار و کړی او بیا
آن لا عبث مه تېروی . تل کار
و کړی څو په ژوند کی د خوښی
او بریالیتوب په خوند پوه شی .
[مازاریك]

سړی په کار او کړو پېژندل
کېږی . [پیتاګور]

کار د ژوند قانون دی، د ټولو
اکتشافاتو او ټولو پرمختګو
قانون . [لاکوردر]

هر وخت چی دا حس کړم چی
یو درد، رنځ یا غم ما زهیروی
و کار ته پناه وړم، کار زما د
دردو د پرېشه درمل دی .
[والتر]

بدې ورځی کی هر سړی یو کار
باید ولری . بې کاره سړی د
ټولنې داوږو بار او بوبې ګټې
غړی دی . [ویکتور فوشه]

کار هر کار او په هر ډول چی
وی، ددې دپاره پیدا سوی دی
چی د بشر د خوشبختی او
پرمختګ وسیله وی .
[شالینګ]

یوه ورځ بې کاری لکه یوه شپه
بې خوبی ستړې کوونکی ده .
[بنتی سن]

ښاغلی عبدالرحیم «هاتف»

# دیمراسی

## دېمتریاس دی او عاشقه اشوکا ته منسوبه ده

دا انسان اجتماعی ژوند نه که په ژور نظر و کتل شي معلومېږي چې د وحشت له حاله بیا د ماشین او برق تر استخدامه پورې ئې معناً او مادتاً ډېر مدارج وهلي دي، عموم محققین چې دغه مدارج څېړي د مدنیت نوم د ګروندګرۍ د مرحلې سره تړلوي نو که د اجتماعي مدارجو ترکیب لکه د طبقاتو تمیز او د ارزښتو تبعیض او امثال ئې د ګروندې سره تړلي و ګڼو کروندې په خپله بیا د اوبو سایه ده، یا په بل تعبیر تمدن ته آبداری هم ویلای شو.

په هغو زمانو کې چې دا انسان لو آله د طبیعت ور کړی منګولې وې او ور وسته ورو وسته به ده د خپل کسب نتیجه یعنې هغه نیمګړې وسلې په کار اچولې چې هغه به هم د چمبو په زور څرخېدې ترقدرتی او بو پورې نه د مدنیت بله منبع نه وه، بلکه دی ئلوی پانه چې د اوبو په صنف کې هم هغو اوبو چې مستدامې وې ښه مدنیتونه ور کړي دي.

که د مدنیت د تاریخ پاڼو ته ګوتې لنډه کو څرګندېږي چې دزدي تر یه یا خه مدنیتونه تو له د سینډوتو پر غاړو را زرغون شوي دي و ګورئ د مصر مجلل مدنیت د نیل پر غاړه وو سومري تمدن د دجلې او فرات په څنډه ژوند اخیستی او د سند مدنیت د همغه رود مرهون دی، نورهم که د غرډولي هره مدنې زانګو و پلټو غیر له دې چې د دا راز پر کتنمنو او بو ترمنځ لاندي وي بله خوا نلري.

بو خبره چې دا ښه باید پاته نه شي داده چې ځینې د او بو دك او سر زوره رودونه د خپلو مجریګانو له قبضې څخه وزي او مدني آثار ور سره وړي په دغه دلیل نو دا ستوانې مستانه رودخانو له څنډو څخه د قدیم مدنیت محقق عموماً لاس ناولې را وزي که څه هم په قوي احتمال هوري هم باید لوی مدنیتونه تېر شوي وي.

دزدو مدنیتو متتبع ته باید کې هم شك نه پاتېږي چې تو له زدې هغانې سره سرګه دي او تو لو پخوانیو تمدنو یو له بله ډېره اخیستنه کړې ده په بل عبارت په هر مدنیت کې تقلیدي مواد پر ابداعي او تخلیقي موادو اوږدي او بدي نو که د زدې دنیا د مدنیت شبکه اوږدل سو یده پښتو نخوا چې د دغې شبکې په منځ کې راغلې ده د قدیم او حدیث تمدن دوجود ټول شرائط اري نو سري دا نسي ویلای چې د بابل او ایلدرم او سند وماوراء النهر منځ دي له پخو پخوانیو مدنیتو څخه په تش لاس و تلې وي خصوصاً بیا په داسې حال کې چې دا تمدنو نه یو له بله پوره اړه هم ور سره لري.

پښتونخوا او په اري، مرانع اري؛ هواري مځکې اري خوندي غرونه اري، لنډه ئې دا چې د مدنیت چې هر څه په کار دي هغه اري بلکه پو څه

لا بالا، نو که څه هم زموږ پلټنو
لا تراوسه زموږ مدنیت پـر
پر ښه نه دی لګولی قدیم او قوي
مدنیت چي هرو مرو پردې مځکه
تېر شوی دی تخمین او تصور
باید له لاسه ورنکړه شي ځکه
هره کمه چي د پښتونخوا په
هر کوټ کي د تحقیق په غرض
پر مځکه نښلي دا امید ښکاري
غورځوي او اسه نو ځکه هرڅه
تراوسه زموږ کیندني او حفر-
یات خو لا پر ښېږده چي د پري
سره لاس ترغاړه دي د مځکي
پر سر هم موږ د پر ځله اداسي
آثارو سره مخامخ کېږو چي
د ځلاند پښتوانې تاریخ د پوې
مهمي پاڼي عنوان کېدای شي
د سرېوزي په څـوله کي د
اشو کا فرمان ددې خبري ښه
مثال کېدای شي، او تصادفي
نه ده چي ددې قبیله تصادفاتو
سره مخامخ کېږو ځکه زموږ
هیواد هم د نورو تاریخي مځکو
په دوم د زمـانې په سیر کي
د پرې تو دي ؤ سرې ځکلي او
راز راز د پدا نیمي لیدلي دي
او که دغه د زمانې کږوږ پاس
دا قوامو د شهامت محك وګڼو
نو هرهغه ولس چي دا د اړوؤ
ځورو صحنې ئې لیدلي وي
اوس ئې هم د روزګار د ناملائمانو
په مخ کي زغـم کم او د برم
چانس ئې خوا ځوا کي دی
پښتونخوا نه چیري چي دوبدی
مدنیت رنګ لوېدلی دا او ستانې
ثقافت زنده چاودلي ؛ لوی امپرا-
توري تاسیس شوي او مـدني
پېرېږه رژېدلي دي خصوصاً د
هلمند او ارغنداو غاړونه چي
خپلي تاریخي مجري ته ادامه
ورکوي د درنو مدني آثارو
د کشف اسره پېځایه نه ده ، د
هری مځکې قلمرو د زمانې په
سیر کي له انقباض او انبساط
سره مخامخ کېږي ، زموږ پر
هیواد هم داسې حالات راغلي
دي چي کله په د متجاوز په مټه
کي ځاپېدلي او کله په ئې د
سیند او بحر پر ځنډو لېږږي
ګول ، په دغه شکل ئې په ثقافتي
د ګر کي هم هرهغه مدوجزر
چي تصور ئې دا وج وحضیض نه
ورختای ؤ او پېدای شي لیدلي
دي ، که وو ایـو چي کله به د
یو هغې کاروانونه له دې ځایه
بار ېده او کله بـه بیا هېښو
سترګو د تجسس دا قناع پاره
وشاوخوا ته کتل مبالغه به مو
نه وي کړي .
دغه د حالاتو په تحول کي یو
وار د زړې دنیا لـوی سردار
مکدوني اسکندر ته درویشت
پېړۍ پخوا وار ورغی ، چي
پردې مځکه برید وکي او تر
څلورو ، پنځو کلو جګړو
وروسته ئې ترهـابل سر ځان
وباسي . باید روایو چي دې ستر
جنرال آریانا فتح کړه خـو
ونې نه نیول ، تـر اسکندر
وروسته دده مفتوحه ممالك
یوناني افسرانو قبضه کړه او
افغانستان هم پدې چکـر کي
د دوو درو یونـاني کورنیو
فرمان ته پداسي شـکل غاړه
کښېښوه چي متبوع د تابع په
منلي او د خپلي منشا سره ئې
رابطه شلولې وه یا په معاصره
اصطلاح ددې مځکې تابعیت
ئې اخیستی ؤ . یوناني فرمان-
روایان ددې خاوري د مصلحت
د پاره کار کولو ته مجبور شوه
او هغه چـاچي ددې هیواد په
سـور وا ـو کي ئې ښه اوږه
وهلې ده د دوهمی یوناني کورنیه
دوهم راکمن د مترپوس دی چي
خپل د پلاررو پانه داخلي انتظام
ئې د دولت رأس المال کي او
پر هغه ئې په هند کي د آریانا
په نفع فتوحات بنا کړه او پر
جهانکشائی سرېوره ئې ددې

مځکې په عمران کې هم د پرزیارا یستلې او ښارونه ئې ودان کړي دي، که څه هم په اطمینان سره ویلای شو چې زموږ د مدنیت تاریخ د یونانی او ساسانی، او حتی ویدي عصره څخه نه راشروع کېږي، ځکه د ځینو مؤرخینو له وینا سره سم د راویدي مهاجرت و هند ته هم د آریائي مهاجرت په نوګه له دې خوا شوي دی. چه طبعاً د تحقیق په نتیجه کې د هغه هم څرګند ېدای شي خو ځکه چې ددې کړنو موضوع عامه نه ده نو بیرته و د هېراسي ته راګرځم.

د هغو ښارو څخه چې د مترپوس اباد کړي دي یو ئې د مترپاس اراکوزي یاد کندهار د پېترپوس آباد دی او لکه ښاغلی کهزاد چې وائي: ددې ښار په اهمیت کې د مؤرخینو تر منځ اتفاق نشته، څرګنه ئې د کلات په شاؤ خوا کې ګڼي او څرګنه ئې دا رغند او پر هغو غاړو ګڼي چې د کندهار په حدودو کې دي، ددې خبرې واقعیت په راتلونکې زمانه پورې خوانه کې، خو زما په ګمان د کندهار قرب و جوار ترجیح لري او خصوصاً د غه د پېراسي یا د د پېراسي اطراف دې پدې دلیل چې:-

الف: که ئې له دې خوا وروا خلو یا ئې له هغه سره او نیسو دلته او احیاناً په نور عالم زاده او نوي ښارونه د انس او تجانس داصل په سائقه متصل یا قریب سره راغلي دي مثلاً د کندهار په مورد کې که سړی له ښاره مخ پر مغرب وروزي د سرپوزي پر سر و تل ئې مغولي او موریائي کتیبې نظر جلبوي که څه هم په خیله زوړ ښار یاد پوزي سر زموږ د تاریخ تازه او نوي بنسټ دی خو د باباولي د دروازې د اشو کا فرمان په دغه مرتبه کې نه راځي پردغه مخه چې سړی ورسم شي د شرق او جنوب تر اوږد میلو پورې ځای پر ځای د قدیم تمدن له مظاهرو سره مخامخ کېدای شي مثلاً: د ماشور، زلخان او پنجوائی تر منځ ځای پر ځای د پري خاور پټې غونډۍ لیدای شي او احیاناً د کتو نکې نظر د خاورو نو کوټو تر حد تېرېږي او د منظم ښار د نارګو ننداره کولای شي مثلاً: د سلاوات (صلواة) د غره پر جنوب غربي کنج باندې ديوه وړه داسې ښار خرابې لیدای شي چې د حصار، بالاحصار او مرکزي ارګ هر یوه د ودانۍ خطوط پکښې څرګند دي.

له هغه ئې دا چې د پنجوائی سیمو نه په تاریخ کې ودانۍ منسوبې دي او له کندو څخه ئې د مدنی آثارو د کشف هیله بې ځایه نه ده، او که سړی په دقت د غه خاورنو غونډیو ته وګوري نو ویلای چې دادي د طبیعت خوشې امانې دي او تر وزرو لاندې دي ئې دانسان د لاس محصول نه وي راغلی. دا خبره هم د هېرولو نه ده چې د مځکې پر دې کوټ زیم استیلا کړېده او په قوي احتمال به د قدیم مدنیت عضوي آثار ښه روخوړلي وي، تر دې حده چې د سلوات ښار چې د غره پر څو که پروت دی لا هم ښه روکوا ولی دی او تر پخوانیو کودرو پورته ئې چې د هغه پر سلیقه جوړ شوي دي پر سطح بل څه نه ښکاري، خو بیا هم که د غو خاورو له تل څخه د پرېن باور غیر عضوي آثار راوکښلای شو ممکن د پخوانی تمدن د بلګې کار و کړای شي.

دغه د قرب او اتصال د اصل پر اساس عاشقه چې په نامه کړ ئې د اشو کا اثر ځلیږي هم د دغې سیمې په چار پېر کې پر ته ده او د اشو کا د زمانې داوررو

وداني په توګه‌ئي خپل ځان د مقارب نامه تر پلولاندې پټ کړېدی، دمدنیت د ابتدائي میلان د اصل دغه اندازه څېړنه پر دغه ځای کافي ګڼم.

ب: دورشو طبیعي موقعیت دی چې له هره بابه د مدنیت وتشکیل ته مساعددی او وتفصیل ته‌ئي ضرورت نشته او پداسې حال کې چې دمنځنۍ ګک څخه چې دغرو پرڅوکه پروت دی د زړو کالو اثار راوتلای شي پهدې مناسب محیط کې چې د مدنیت تولد واعي لري څه ډول کېدای شي چې څه‌دي نه‌وي؟

ج: [دنامه قرب]. د دبهرامي او دبهتربـاس ترمنځ هم نږدې کم نسبت نه‌دی موجود کم چې دعاشقه او اشوکا ترمنځ شته او لکه دافغانستان په نورو ځایو کې چې د اشوکا ابانیه عاشقان سویدي دلته‌ئي (دعاشقه) شکل اخیستی دی او همغه چاته چې د اسا نیاتو ابزمبادي معلوم وي د زړو کالو په تېرېدو سره داوموده ادني اوښتل په خورا سهولت منلای شي.

د: [مسکوکات]. چې د اورېدو له قراره کله کله له دغو غونډیو څخه یو واڼم فلزي مسکوکات ودو او زړونه پهلاس ورځي چې دغه هم له دغو خاورو څخه دطبیعت ګمان پورته کوي.

په دغو دلائلو زه عاشقه اشوکا او دبهرامي دبهتریوس ته منسوب ګڼم او هیله کوم چې د دغې سیمې کندنې ښه نتیجه ورکي.

*******

«تتبع»

ښاغلی محمدحسن اڅکزی
دابیاتو دفاکولتې لیسانسه

# ماشوخېل

## څوګ وو

حمید ماشوخېل د پښتو یو نومیالی او پیاوړی شاعر و، په کام مومند اوړد پېښور د ماشو نومي کلي اوسېدونکی و. دحمید شعري نهضت او شهرت د ۱۱۳۰ ه په شاوخوا کې اټکل شوېدی دزېږېدو وخت ئي ۱۱۰۰ ه څخه دمخه معلومېږي د محمدشاه ګورګاني معاصر او د اورنګزیب د مرګ په وخت کې ۱۱۱۸ ه هم ده د شاعري هنګامه موجوده وه. لکه چې ده د کلام څخه څرګندېږي:-

څه به شور نه‌وي ذهند په میخانو کې
چې اورنګ څخه دحکم جام نسکور شو

حمید دپښتو یو نازکخیال شاعردی. دی هم لکه رحمان او خوشحال دپښتو په شعر کې دیوه اوږد مقام خاوندی. حمید دپښتو بازار ښایسته اوده نازکخیالی او مضمون افریني استاد وشمېرل شو. دپښتو شعرئي رنګین او خوندور کړ. دالفاظو په مزی کې ئي د اسمان ستوري وپېیل. په هغو ځایو کې دخیال په وزرو رالوتې چې هلته عقل هم دعجز سر ښکته کړېدی.

ده په وخت کې دپښتو شعر معنوي او ظاهري ښایست پیدا کړ. خوږو معناو په خوږو الفاظو کې ځای پیدا کړ. یا په بل عبارت دپښتو شعر یو لوړ مقام ته ورسېد. همدا وجه ده چې حمید دپښتو د شعر استاد وګڼل شو. او دخوشحال او رحمان په

په دله کې وشمېرل شو. د حمید په شعر کې نازك خیالي، شعري تلازمات استعاري او تشبیهات ځینې وهي. د پښتو په شعر کې ماشو خپل هغه مقام او درجه اري لکه په فارسي ادب کې چې د بېدل په نصیب شوېدی. زموږ زبات برهان ده نه د پښتو بېدل وائي. که خوشحال د پښتو سعدي او رحمان د پښتو حافظ وي نو حمید د پښتو بېدل نه بلکه د پښتو نظامي او جامي هم بلل کېږي، که د حمید دیوان دې د بېدل په صف کې دروي دعوې د ډېر ننګ عشق مثنوي ده نه د نظامي او جامي په صف کې د درېدلو حق ور کوي.

د حمید شاعري د استقادي شاعري ده، د آزاد تخیل او ابتکار شاعري ده، داته د فکر ستر ګې ډېرې تېزې او باریك بینه دي، داته د تخیل وزرونه تېز او د خیال ذره بین ډېر قوي دی. داته د دریاب د شګو شمېرل ډېر اسان کار دی.

داته د آسمانو سیاحت او ګرزېدل د ستر ګو د رپېدو کار دی.

لنډه ئې دا چې داته د قدرت او طبیعت ټول مناظر غوړېدلي او د ستر ګو لاندې پراته دي.

حمید د پښتو د ادب د اسمان یو ځلانده ستوری دی، ده په خپل سوځېدونکي شعر د پښتو د ادب مقام ډېر اوډ کړ، او له هغو تېږګونو ئې ډك کړېدی چې هغه د ژبې د ښایست معیار ګڼل کېږي. حمید په خپل فن کې یو منلی او ونلی شاعر دی. که رحمان د الهامي او غیبي دریاب ځخه مرغلري راکاږي نو حمید د طبعي دریاب په ځپو کې ځان لاهو کوي. حمید په پښتو کې د یوه ادبي مکتب او ځانګه د جلا سبك ښتن دی. د خوشحال او رحمان له مکتب ځخه ور وسته ده دوار راسېږي نو ځکه موږ د عصر او زماني په لحاظ ده ده مکتب ته دریم ادبي مکتب وایو. د حمید مکتب د سوز او عشق مکتب دی، حمید خپل مکتب واوډ معیار ته رسولی او بېدې مکتب کې هر څوك خپل فن او لیاقت په اثبات نشي رسولای. داته کاظم شیدا قلندر محمدي صاحبزاده، پښتون بېدل، میرزا-حنان او احمدي صاحبزاده غونډې شاګردان شامل پېدای او ددې مکتب د بلوم اخستای شي.

د حمید سبك په پښتو کې پوره شهرت اري او ددې استادانه مکتب کې ډېر زبر دست شاعران داخل سوي او بالل شویدي. ناز کخیالي د تخیل او چتوالي او مبالغه ددې سبك مهم خصایص بلل کېږي. ادبي تلازمات په ډېر پیمانه لیدل کېږي. د نا اشنا استعاراتو، تشبیهاتو او د تخیل او محاکات مخزن دی.

په دې سبك کې د خوشحال او رحمان غوندې روانی او ساده ګې نه لیدل کېږي. او دا هم باید وویل شي چې د حمید د تخیل اوږوالی ځه قدر ده، په کلام کې سختي او پېچید ګې پیدا کړېده. د افکارو په لحاظ د غه سبك زبات عشقي او بزمي شکل لري. مګر کله کله اخلاقي او اجتماعي رنګ هم لري او د تصوف او عرفان لاري راښئي.

لنډه ئې دا چې حمید د پښتو د ادب یو نومیالی استاد او د یوه لوړ مکتب مؤسس بلل کېږي. دی د شاعرانه فخر او غرور میدان ته راوځي او په ځوړه سوز او زوړسره وائي:-

چې هیڅېري په فارسي کې مونده نشي
هسې ساز دې حمید ایښې په پښتو کې

فارسیانو دحیرت گوتی پهغاښ کړی
چی حمید سخن سازی کړه په پښتو کی

دخیل سو ځروانکی شعر نږغ دریاب له خولی څخه اوری .

د حمید سوزنده شعر وسوځوسوم
دا اواز کاندی رباب له زیرو بمه

خپل فکرته شاباسی ورکوی او په ځومره خوږو الفاظو سره وائی :-

چی له ښو ښو مړ نو ځی میدان بوره
شابس شابس دحمید فکره نو رځنه

په پښتو کی چی ځوک خپل مقام او سیال نه ویني نو دخپل فکرواکی تیښگوی او داسی وائی :-

اوس دفکر توره واچوه حمیده
چی دی نشته په پښتو کی بل حریف

اوس هم قناعت نهاری او دغم له سببه خپل شعر نیمگړی بولی او وائی چی گوندی اسمان ته د شعر زینې کښیږدی .

واسمان ته به دشعر زینې کښیږدی
که حمید دغم له سره زنگون و کیښې

که ځوك دحمید نیرنگ عشق دی لاندی بیتونه په غور وگوری البته چی دا تولی دعوې به بې مبالغې ښکاره نشی .

شعر نهدی دا خوناب دزخمی زړه دی
یا و تلی دمتی دم له خولي ذمړه دی

یا نغمه دنیم بسمل مرغه دخولي ده
یا مجنون ته معمی ښکلی لیلی ده

یا د ویښو اباسیند وهلی موج دی
یا له ښاره دحیرت وتلی فوج دی

حمید په ادبی ویښا کی د لوی شهرت څښتن دی

دده دشعر اوادب شهرت په هره تولی کی پورت دی . دی پیشکه د ناز کخیالی د کاروان مشر دی . همداوجه ده چی دتولو ادیبانو له طرفه ده ته موشگاف لقب موندلی دی . دده د پښتو تول وروستنی شاعران موشگاف وائی . اودیوان ئې په دروموجان سره مشهوردی . دلته موږ هغه ویناگانی چی وروستنیو شاعرانو دده د ادبی شهرت په باب کی ویلی دی په مختصر دول راوړو .

پیر محمد کاکړ دخوشحال، رحمان، عبدالقادر اشرف خان څخه وروسته دده یادونه داسی کوی .

پسله دو یه موشگاف عبدالحمید دی
چی ئې دوې ښه نازك نکته دان شعر

ابریدی قلندر چی دده معاصر شاگرد دی خپل خیال داسی ښکاره کوی :-

فضل دسبحان په قلندر دشعر وشو
دا واره سبب فصیح بلیغ ؤ د ماشو

عبدالعظیم د رحمان بابا څخه وروسته پر حمید زیاته عقیده لری او وائی :-

رحمت بیا په ماشووال عبدالحمید شه
چی جوړ کړیده کتاب دی ښه روښان

بحث دعشق ددي کتاب دی په هرځای کی
د یاران په دود پری زاری عاشقان

اشنغری بیدل دشاعرانو په ډله کی دحمید یادونه په داسی دول کوی :-

خصوصا عبدالحمید یکښی حمید دی
چی و بیښه چری په فکر هسی ځوان دی

عبدالله محزون بدي دول خپله عقیده څرگندوی :-

دحمید موشگاف وخیال ته هوښ کړه
گوندی شی دده پسه شعر تیز انظار

بل ځای بیا وائي :-

د حمید د ژبې څه تعریف کړم
موندہ اشي به پښتو کې بله ژبه

د پښتو په شعر هیڅوك نه پوهیږي
د حمید د نیرنګ راز غواړي خو نشته

میرزا حنان کندهاري وه نه یو خاصه عقیده
اري او خپله عقیده داسې ښکاره کوي :-

بل حمید موشګاف د خیال په شعر
څه به وایم نادقته در ني پیل

د حمید د سبك په پیروی او متابعت کې یو بل
ځای داسې وائي :-

د حمید د خوش نظمی په زراعت کې
د حنان ني دی د شعر خوشه چین

یو بل ځای بیا داسې وائي :-

د حمید د شعر بحر نه حنانه
یو څو څاڅکي دي او هدا ستا ابیات

شمس الدین کاکړ وائي :-

پسله ده نه موشګاف عبدالحمید دی
باریکي ني د کلام ده جهان د شعر

قاضي میر احمد هم د حمید د طبیعت زور معني او د
اسمان د ستورو پیونکي ورنه وائي :-

چې ني و پیل په زور د طبیعت خپل
د الفاظو په ځای ستوري د اسمان

مستر راورتي مستشرق هم ددة په باره کې داسې
وائي چې :-

د حمید دیوان د ترجمان په پښتو کې لایق د
تحسین یو کتاب دی، ده د شاعري په باب کې
وائي چې حمید د ملاحظې ور شاعر دی د ستاینې
ور ابیات لري، او د هر اروپائي مصنف خوښیږي.

د حمید ادبي شهرت د پښتو نخوا تو له خاوره نیولې
او هر ځای نه ده د شعر نوم رسېدلی دی د هرې
نخوا شاعرانو ده خوندور کلام خوښ کړیدی
ژبا نو شاعرانو ده استادي منلې او د استادي حق
نه قابل شویدی.

په عامه طبقه کې د حمید شهرت دومره زیات نه دی
بدې معنی چې د رحمان بابا مقام ته نشي رسېدلای
د غه مقام پوازې د رحمان بابا په نصیب شوی او د
بابا لقب په پښتو کې دده د عام شهرت دلیل دی.
ددې خبرې دلیل ښائي داوي چې دده کلام څه
قدر سخت او مشکل دی نو ځکه هرچا دده د کلام
سره علاقه نه ده پیدا کړې. او په کومه اندازه چې
په ادبي دنیا کې څرګند دی په عامه طبقه کې
هغومره نوم او شهرت نه لري.

حمید په ادبي دنیا کې د سوځوونکو اشعارو خاوند
دی ده اشعار د سوي زړه اواز او د یو ه دردمن او
غمجن زړه احساس دی په عشقي دنیا کې ده
افکار له اعتدال څخه پورته دي. ده تو له شاعري
که موز و غواړو چې په څو تورو کې ئې ځای کړو
او خلکو ته ئې ښکاره کړو نو هغه به د عشق، محبت
سوز او ګداز با کې کلمې دي. په عمومي ډول
و بلای شو چې ده د افکارو او احساساتو مرغلرې
د الفاظو په ترکه نار کې پیلی شوي او د شعر اصل
ځنی څوړند شویدي.

د حمید په شعر کې سلوك او تصوف هم پوره برخه
لري مګر دده تصوف لکه د میرزا او دولت غوندې
افراطي تصرف نه دی. دده تصوف اعتدالي دی
دی د طبیعت په زور بدې درباب کې ګډیږي د
عشق په بازار کې د حمید هنګامه ترهرچا زیاته

ده دزړه ددفتر اوهري پانه ئې دمينې دسوز او ګداز په مناجات غوړيږي اووائي:-

الهي د محبت سوزو ګداز را
په دا اور کي دعشق مستدر ساز را

په عشق کي ښادي په اور کي راحت لټول دي دده په نظر عشق لوله اور دی لوخور کندۀ شوه چي پتنګ عاشق او بلبل تن پرور دی . حميد بلبل له ځکه تن پرور وائي اود پتنګ غوندي اور او سره لمبه غواړي، اودا سي وائي:-

تن پرور بلبل دي عيش کاندي په ګلو
پروانه غوندي په اور ماله ګداز را

یو بل ځاي هم دغسي غوښتنه په بل عبارت کوي:-

چي دي لوم په غوږو واورم سره لمبه شم
هومره سوز را کښي پيدا کړي زما ربه

حميد عشق داور لمبه بولي:-

لور څه نه دۀ عاشقي هومره پوهيږم
چي لمبه داور په نام دعشق لو مري

حميد راقمي دعشق په بازار کي بيږي اود شمع په شان د سر ښندل پدي لار کي بها بولي .

عاشقي ده واقعي د سود سودا
ځکه سرور کوي شمع په خندا
چي بازه شي سر و مال په عاشقي کي
دا سودا ده دغه سود اره پيدا

داسي معلوميږي چي د حميد اوخوشحال دعشق لو پير د پرسته او هر يو په چلا چلا اندازه سره غواړي خوشحال داسي وائي:-

عشقه لمر اور لګه زيب باچا بهتر ښي
چي خوشحال دي په دنيا کي سر بلندي کړ
مګر حميد خپل عشق نه د رښتيني عشق خطاب کوي او د هر علم استاد ئې بولي .

د حميد رښتينی عشقه
په هر علم کي استاده
د شاه ګدا دقصې په سر کړواني د-

چي رښتيني محبت د چا رهبر شي
په عنقا باندي ئې لاس د نيوو برشي
مقدم چي ئې پامينه کي قدم شي
مکرم په دا سبب بني ادم شي
چي ور پيښ د محبت ادو بيچ نه دی
که بادشاوي هيڅ ئې مه ګڼه هيڅ نه دی

ژوندون لوله سر ګرداني ده او په لپره بيا دژوندون د اضطراب څخه په حقيقي مثال راوړي:-

بي مر ګه ارام لګه پاره په عشق کي استه
يم په خوژوندي يم هميشه په تزازل

داسي وائي چي عشق او محبت دا سمان سره يو ځای جهان نه راغلي دي، دا دنيا له عشقه پيدا شوي او ځکه دي هم عشق او محبت په خپله خته کي اخښلي بسواسي .

لا هاله حميد ککړ په محبت ؤ
فرښتو چي ساز اوه په ترتيب ورو ورو

پريشاني او غم دعشق طبيعي صفتو نه دي او عاشق په هر حال کي د تزازل او حرکت څخه خالي نه دی نه په وصل کي ارام مومي او نه په فراق کي لکه چي وائي :-

نه له تا سره سمږيږم نه بي تا
مبتلا دي کړم په څه بلا پتا

په لوا او کائنا او کي دزړه دغم دقراري د پاره د خپل محبوب څخه بل څه نه ويني .

تماشا د ګلشن څه کوم بې تا
یاسمین وسمن څه کوم بې تا
نه زما سترګې لیمه چې ته نه یې
ننداره د چمن څه کوم بې تا
هیڅ رنګ نه غواړي فردوس بهار دیداره
ګورو ګلې وطن څه کوم بې تا
سوی تاري د غم اهو نه د زخمي زړو کاردی
له دروغو زړو څخه دا امید غلط کاردی
د پرزړلي تاري ګلله به دروغ زده شي
د بلبلو تاري مه غواړه له زاغه

حمید په اخلاقي او اجتماعي خواو کې هم ګله ګله څه ویلي دي. د اخلاقو په درس کې د حرامو غندنه په ښو مره حقیقي صورت اظهاروي.

که څوک نه پټوي سترګې له حرامو
شي به ښو کې پېژندهٔ پردګه پټه

د احسان تبلیغ په څنګه رنګ او لباس کې راوای.

چې د او سیني ځنځیر شلوي په ګوتو
هغه دې په او ملتار د احسان تیلي

د حمید د غزلاندي بیتو نه که څه هم دوه نیم سوه کاله د مخه ویل شوي دي مګر د اوسني زماني د حال سره برابر دي او سړی داسې خیال کوي چې ګوندي دا وسني زماني کوم شاعر ویلي وي.

حمید د انتقاد میدان نه په ښو مره تیزي او متانت داخلیږي او هغه څوک چې د پرده بو بر حقوقو باندې تیری کوي داسې ئې غندي:-

حق بېنې نه لکه سوبه
غټې سترګې ځان ویده کړي

اوس غواړم چې د حمید د نازکخیالۍ او ښې وبناو څخه یو څو مثاله راوړم.

د ګوري، چې دي کښې ئې له ښو مره او د نخیل څخه کار اخستی دی.

دا زما له غمه شین زړه یکښې خیال د یار د شونډو
هسې رنګ زیب وزینت کا لکه مي په شنه پیاله کې

د یار د پټو سترګو عشق نه متوجه کېږي او وائي:-

واره عشق د خونریزي کړي درپوهېږم
دا چې پټې سترګې ناست ئې لکه باز

زړه د وښو فواره او مځکه د غم ژانګو بولي.

خونخور د یار راغې نماشو له
که مې زړه ورته د وښو فواره کړ
په هر ځای کې ناست ولاړ ژانګم له غمه
مینې مخ راته د مځکې ګهواره کړ

د نسیم څخه یو شاعرانه خواهش کوي او وائي:-

چې مې یار له خوبه ویښ نه کړي نسیمه
ګوره الوزه په ورو ورو په تلطف

زړه بیار ځنې وړی دی او خپل ځانته داسې تسلي ورکوي :-

وړی زړه په تلوار مه غواړه له ښکلو
و وطن ته رسیږي غریب ورو ورو

ټول پښتانه د پښتنو والي په روح ژوندي دي پدې لاندې بیتو کې د پښتونوالي روح، د بل ناموس ساتل او پټ پالل بیانوي :-

چې د بل ننګ او ناموس ساتلي نه شي
وبه نه ساتي خپل ننګ او ناموس
پروت په وښو کې لت پت شه یم په پټ کې
نه د سرو زرو په تخت باندې بې پټه

[د حمید آثار] هغه اثار چې موږ ته معلوم دي. یو دده دیوان دی دا دیوان د خوږمن اراده رده د ډک زړه تونې دی چې په ادبي جرګو کې د حمید په

دروه مرجان سره یادیږي . بل اثر ئې د شاه ګدا قصه ده چې هغه ئې په فارسي لیکلی وه . دریم اثر ئې د محمد اکرم د نیرنګ عشق پښتو ترجمه ده چې د عزیز او شاهد قصه ده او د حمید طبعي قوت او اقتدار ځني ښکاره کیږي . دا دواړه کتابونه ئې له فارسي څخه ترجمه کړي دي . د نیرنګ عشق د دې لاندې بیتو څخه معلومیږي چې ده په مثنوي کې پوره لاس او قوت دراود . له دې سببه حق لري چې د جامي او نظامي په ډله کې وشمېرل شي . هغه بیتونه دا دي :-

ماچې و پېل دا در په ار بکي
غوږ ور کړی بوله بل مبارکې
چې داب سره هوائي شوه ولاړه
د یاقوتو له بازاره ګرمي ولاړه
بل سره نسته دار نګ در ګرامي
مګر یافت شي په دکان د نظامي
که څوك غواړي دا شراب حیرت انجام
مونده کېږي د جامي په ښکلي جام
شعر نه دی دا خوناب د زخمي زړه دی
یاو نالې د ستي دم له خولې د مره دی
یا نغمه د نیم بسمل مرغه د خولې ده
یا مجنون ته معمي ښکلي لیلی ده
یا دو ښو ابا میغند و هلی موج دی
یا له ښاره د حیرت وتلی فوج دی
څو وهي د فکر زامي یا ندي شخوند
زیاتوي زما خبري هومره خوند

حمید د عمر په اخري برخه کې د شرعة الاسلام نومي یو کتاب هم په پښتو نظم ترجمه کړی دی ، چې اثر ئې په تخلص زیره بیته کېږي . دغه کتاب په اصل کې په عربي لیکلی شوی او مؤلف ئې د بخارا مفتي بن ابي بکر الحنفي و . د دې کتاب ترجمه په ۱۱۴۸ ه کې ختمه شوې ده او بیدې اساس د حمید د ژوند زمانه تر دغې ځنې پورې رسیږي . شرعة الاسلام په لنډه مثنوي لیکل شوی دی او د سرځو بیتونه ئې دا دي :-

حمد و شکر دی بې حده
تا اسره خدایه احده
دم قدم مې ستا ترفیق
په دا لار کې شو رفیق
راته تا کړ په احسان
دا مشکل منزل اسان

د شرعة الاسلام دغه پښتو قلمي نسخه ښاغلي عبدالشکور رشاد موندلې ده او په ۱۳۳۸ کال کې ئې د وږمې په مجله کې یوه مقاله هم پر لیکلې ده . دغه لاندې غزل د نمونې په ډول راوړم :-

بیا د مینې نوی خیال شو راته پېښ
تاخت و باخت و سر و مال شو راته پېښ
چې مې چېن ور ځنې نیښتې په ګیر ځی کې
په دوستۍ ها سې حال شو راته پېښ
چې مې غوندې ارمون په وېښو دك شو
د سرو شونډو انفعال شو راته پېښ
په یوه سودائي نیم سوده ن کړی
محبت ساده دل شو راته پېښ
ځان جهان مې واړه ورانه له فکره
چې مې فکر د وصال شو راته پېښ
سورچېنیان بو به د حال عبدالحمیده
درد سر و قیل و قال شو راته پېښ

د نور په ۲۰۸ مخ کې .

د مرحوم مولوي صالح محمد اثر

# په قفس کې بلبل
## يا
## د بلبل ژړا

يو سحر زما تر غوږ سوه له بلبله — په قفس کې ئې زړل دائې وبله
چې بندي شوم د صياد له سخته داله — ولې نه پوښتي څوک حال زما يو له بله

ولې نسته بې فغانه کار و بار زما
ولې حبس ابدي راغی په وار زما

نه محرم چې د زړه حال ور ته بيان کړم — نه مې وس چې خبردار بلبلان کړم
نه ملګرې چې چمن ته ئې روان کړم — بيا بيان ور ته د ګل او د ريحان کړم

خپل د زړه دارمانونو ته خالي کړم
تول مرغان د چمنو په ځان حالي کړم

چا ته وژاړم پر چا باندې فرياد کړم — چا ته خاورې پر خپل سر باندې باد باد کړم
چا ته وګورم په څه شي زړه کې ښاد کړم — د صياد له لاسه چا ته عرض و داد کړم

څه را وسوه چې د تور قفس بندي شوم
نه خلاصيږم په دا بند کې ابدي شوم

ولې زه له خپله سيله راجلا شوم — ولې زه د خپل وطنه را جدا شوم
ولې زه په وېراخته په واويلا شوم — کور و کلي مې سو پاته خوار تنها شوم

کم ظالم کړمه بندي خدای دې بندي کړي
خدای دې ماغوندې اخته په جدائي کړي

اوس به زه الګه ما نور په هوا تلمه — په هوس د آزادۍ به نازېدمه
پر غنچو به د ګلانو مسېدمه — روغ په روغ به غوړېدمه لوبېدمه

---

«د ۱۹ مخ پاتې»

په دغه مقاله کې د ښاغلي رښتين صاحب د پښتو داد بيانو د تاريخ څخه او د ده له آثارو څخه او دغه راز که د رحمان بابا د ديوان، او د ماشو خپل له ديوان څخه استفاده شويده.

چا بندي کړم خدايه ته يې ځان ته اخته کړي
په قفس ئې د زندان ځگر سوخته کړي

اوس به گرځېدم آزاد په چمنو کې … الوتم به په صحرا او په باغو کې
مست به گرځېدم خوشحال په شگوفو کې … ولې اوس يم په غمو په اندېښنو کې

چې بندي دي د قفس کړمه صياده
خدای دې ما غوندې بندي کړه ای آزاده!

الغرض چې ده وهلې دا ناري … د قفس له لاسه وه په غلبلې
چې ناگه د چمن باد راغئ د کښې … چې پرونېت دائې وواته له خولې:

مگر دا باد د چمن له خوا راغلی
چې ئې زما صبرو آرام راشخه وړی

اوس بيا گل او سرلي هغه بهار دی … د نرگس او شگوفو گرم بازار دی
د طوطيانو به گلشن کې چنهار دی … په چمن کې د بلبلو چنهار دی

پر گلانو الوته کا په خندا
زه بندي يم د قفس او په ژړا

زړه مې ډك دی سره چوی د ارمانه … خدايه ژر مې خلاصوې له دې زندانه
نور مې مه پرېږدې په دې ځای کې سبحانه! … بيا مې ورسوې ژر تر خپل بوستانه

که دې زه په قفس نه پيدا کړی
بيا وزر دې ولې ماته دې را کړی

څو تر څو به يم په دې جورو ستم کې … څو تر څو به يم په آه په الم کې
څو تر څو به په ژړا يم او په غم کې … څو تر څو به يمه دا رنگ په ماتم کې

چې اميد مې د خلاصی اشته هيڅ کله
نو بهتر دی مرگ تر دې ژوند بويه مله

بيا نو چپ شو يو ساعت په تأمل شو … زما خيال داسو چې د غم به تحمل شو
بيائې ناري کړه همرازه د سور گل شو … وېلې: آه چې د صياد لاتغافل شو

ځان که مر چې د ذلته نجات مومي
په گوښه کې د عدم به حيات مومي

يو ساعت متفکر و حيران پاته … له ئې شکرو شکايت کاوه و چاته
چې بيا باد د چمن راغی دده خواته … آه ئې وکېښ عرض ئې وکی خپل مولاته

اګه زه همې بندي شې ای صیاده!
د وطن په جدائي شې نامراده

زه چې فخر د چمن زیب د بوستان وم — نغمه خوان د خپلې څانګې او اشیان وم
د باغو د ښو باغچو روح روان وم — د سرو ګلو پر ښاخو به ثناخوان وم
د فولادو په پنجره کې دې بندي کړم
د هر کس و ناکس دې ریشخندي کړم

زه به تل د باغ پر سر ښه په هوا وم — ښاخ پر ښاخ به بیا په ښه ناز و ادا وم
د ګلانو پر سرو به په خندا وم — په څانګې کې باوم ناست بیا په صحرا وم
نه بندي وم د قفس نه مې هیڅ غم ؤ
نه مې اوښکې بهېدې نه مې ماتم ؤ

چې سحر به زه له څانګې په هوا شوم — په ګلشن کې به د عشق نغمه سرا شوم
چې له ښاخه به پر ګل باندې روانا شوم — یاسمن و یاسمین ته به ګویا شوم
آیا څوک اري دا عیش و عشرت نن زما
چې اندېم و ګل خانه ده په چمن زما

که څه نه دي ښه زمانه په داشان مرګ — ولې څوان یم او د څوان وي دارمان مرګ
خو د ژوند د پاره ښه دی ناګهان مرګ — په هزار څله بهتر دی تر زندان مرګ
چې دا هر سهار خپل مرګ په قفس وینم
ولې نه مرم چې به بیا زه قفس وینم؟

په حسرت او په افسوس ئې دا ویله — وګلشن ته ئې کتل بیائې ژړله
د قفس د دروازې ته ئې څغستله — لاری نه وه و زړونې سر بوله
په هوا شو سر ئې ونښت له قفسه
و بنې نوي شوي سود بود ولو بد له هوسه

سر تر پایه په سرو وینو کې غرقاب ؤ — څان بایللی زده زخمي حال ئې خراب ؤ
بیا بیهوښه یا پر هوش په اضطراب ؤ — چې پر هوش به سو ګویا نه په دا باب ؤ
سر ئې بایلود په هوا د آزادیه
شکر شکر شوم فدا د آزادیه

«ویران»

# ښاغلی حاجي عبدالغفور

«خروټی»

حاجي عبدالغفور «خروټی» چې په کندهار کې په شیخ صاحب شهرت لري د مرحوم حاجي عبدالستار زوی دی د کندهار په اوسنۍ لومړۍ ناحیه کې زوکړی دی د مروج علومو تحصیل يې په خصوصي توګه کړی دی.

نوموړی د پښتو یو سابقه‌دار ویونکی او پوخ لیکوونکی د ښو نظریاتو او ښه فکر خښتن دی طبیعت يې بالکل شاعرانه دی، څوک چې تماس ورسره ولري هغه به دا صفات هم پکښې ومومي چې نوموړی آرام، خنده‌رویه او د ښه طبیعت خاوند، خوش اخلاقه د ښې عقیدې درلودونکی او د پښتو ټینګ سړی دی، اوس چې يې عمر ۶۰ کالو ته رسیږي بیا هم ځوان معلومیږي او ناسته او ولاړه يې د یو مرحله د ځوانانو سره دی، د شیخ صاحب د ژوند ډېره برخه په جلاوطنۍ او د هندوستان او عربستان په سفر کې تېره شوې ده، هغه وخت يې پېشه تجارت وه، ۲۵ کاله پخوا چې په کندهار کې ادبي انجمن جوړ شو، نوموړی يې په غړیتوب کې هم برخه درلوده او هغه وخت په پښتو مجله کې يې ډېر مضامین خپاره شوي دي په طلوع افغان، کابل مجله او نورو مستقلو خپرونو کې يې هم خوږه ټکلونه او مضامین موندلای شو دا قلمي همکاري يې حتی د خپلو اوږدو سفرو په دوران کې هم نده دریغ کړې او د هغو لیرو ملکو څخه به يې د خپل هیواد جرائدو ته مقالې او ښې ترجمې را استولې د پښتو په مجله کې چې د مشاهیرو یوه سلسله خپره شوې وه همداسې په طلوع افغان کې ډېر ګلونه د هغه چې د ځینو شاعرانو او د کندهار د علماؤ سوانح خپاره شوي وه هغه ددې په قلم وه، پرته له دې يې د [پښتو لیك] په نامه یو کتاب او هم يې [سیر نبوي] په ښکلې توګه دوباره لیکلی دی] همداسې د [تربیت وطني] او [مدنیت اسلام] په نامه کتابونه يې پښتو ته راړولي دي.

نوموړی په عربي، اردو او پارسي ژبو پوهیږي او استفاده



ځینې کولای شي شیخ صاحب پسله هغه چې تجارت يې څه موده پرېښود نو د کندهار د ښاروالۍ وکیل ورپسې د ملي شورا په انتخابیه دوره کې د کندهار د مرکز له خوا په وکالت وټاکل شو، د هغې دورې تر بشپړېدو وروسته يې بیرته په تجارت ځان مصروف کړیدی. حاجي شیخ صاحب هم د ښو نظریاتو خښتن ویاله نو پدې سلسله کې د پښتونستان د نهضت په لومړنیو ورځو کې چې د پښتونستان نوم [پتهانستان] و دوی په طلوع افغان کې د یوې مقالې په ترځ کې پیشنهاد وکړ چې باید د [پتهانستان] نوم په پښتونستان واوړي اوداد نوم د پښتونستان د سیاسي ټولنو

له خوراکه سمدستي ومنل شو.

ښاغلي شیخ صاحب په عین حال کې چې ښه شاعرانه طبع لري په اثارو کې ئې کله کله ظرافت هم موندلای شو مثلاً وائي:-

داوړې څخه پوښتنه وشوه چې دا مرداري ولې خورې؟ ده وویل چې صرف پدې وجه چې مشوکه، منګولې او نور بدن مې دغسې جوړ شوی دی چې باید مرداري وخورم.

سړي ورته وویل: که څه هم عذر دې معقول دی لېکن پدې نو نه خوامې بده وه چې مردار خور دې وبولو.

د شیخ صاحب مضامین ټول د نثر په شکل دي کوم منظوم اثر ئې تر اوسه نه دی لیدل شوی. لاندنی څو ټوټې چې ډېر کلونه پخوا په طلوع افغان کې چاپ شوي دي په دوی اړه لري.

[۱]

## لیونی

سپین ږیرو به ویل: پخوا یو سړی ؤ چې ټول خلکو به لیونی باله او ده هم په لیونتوب چا انکار نه درلود، دی لدې جهته په لیونتوب نه ؤ مشهور شوی چې ده برنې خبرې کولې او یا به ئې ډبرې ویشتلې، روغ کالي او سمې خبرې ئې وې لېکن دونه ؤ چې ټن به ئې هر څه وګټل خپل ضروريات به ئې پوره نیول او پاته روپیه به ئې په اور کې وسوځلې، سبا به بیا په خپله خوارۍ لګیا ؤ. دوستانو چې به هر څه نصیحت ورته کاوه، فائده ئې نه کوله، ده به سهار په سهار خپلې روپیه سوځلې په آخر کې هرچا لیونی باله او په ټوله ښار کې په لیونتوب سره مشهور شو او رښتیا هم لیونی ؤ چې په زحمت ګټلې روپیه ئې په اور کې سوځلې!

یو وخت ددې اندې څخه یو داقتصادیاتو فارغ التحصیل راغلی ؤ چې دملک په اقتصادي چارو کې به خورا کوښښ اخته ؤ. پفرادیو، اخبارو، او اعلانو کې به ئې ټول وخلکو ته اقتصادي هدایتونه خپرول او دملک حقیقي ژوند ئې به اقتصادپوري تړلی باله. تودې لیوني بیان چا ورته وکې چې یو سړی دی په زحمت او خوارۍ روپیه وګټي بیا ئې په اور کې سوځي ده ډېر تعجب وکې او ددې لیوني دلیدلو دپاره په خپله راروان شو، چې څا څنګه لیونتوب دی. دسهار پر وخت متخصص ده کره راغی ده ئې په عزت سره استقبال وکې د چایو او ډوډۍ مېلمستیا ئې هم ورته وکړه، متخصص ورته وویل چې: نور تکلیف نه درکوم زما ته فقط یوه قطعه سګرټ راوړه، ده سګرټ ورته راوړل او په ښه اهلیت سره ئې مجلس ورسره وکې کوم وخت چې ده د خوارۍ وخت سو متخصص ته ئې وویل: زما د خوارۍ وخت دی مهرباني وکړه راځه چې ځو.

متخصص وویل چې: هسانه خو چا ویلي وه چې دی داسې لیونتوب لري چې سهار په سهار روپیه سوځي، ټن خو دې نه روپیه وسوځلې او نه دې لیونتوب وکړه.

ده وخندل او ورته ئې وویل: هغه لیونتوب خو ټن تا وکې او لدې جهته ما پرېښود.

متخصص په ډېر تعجب او تکبر سره وویل: زه او لیونتوب؟!

ده وویل: صاحبه! هسې به هر سهار پنځه روپیه سوځلې ټن مې د هغو پنځو روپیو سګرټ راتیول چې تا وسوځل

[نور په ۲۶ مخ کې]

علمی :



# ستوري

د نجوم [استرونومي] علم چې خورا قديم تاريخ لري وخت په وخت ئې تحول کړی او د هغه د ترقۍ په وسيله ئې دا دی بشر اسماني جزايرو (ستورو) ته په سفر پيل کوی د الو شنه فضا چې د ورځی د پوښين سمندر په ډول او د شپې په ځلاندو ستورو د کاليدل کېږي يوه داسې خلا ده چې تر شپېږ وتلی اوی او وا ده ستوري په کښې ځای سوي او تر يوې دقيقې محاسبې لاندې هر يو پر خپل مدار حرکت لري هغه سپينه لار چې څوک ئې داسمان چارده او څرک ئې د سپېدو لار بولي د دې زرګونو کلو په ترخ کې د انسانانو په افکارو کې په بېل بېل شکل ځای نيولی دی . بلې خوا ته را تول شوی چې د رڼا انعکاس ئې هغه د يوې سپينې اور بڅی په شکل ادولي ده . د هغو ورو ستيو تحقيقاتو له مخې چې د [استرونومي] علماؤ د لوېو تلسکوپو او نورو نوي وسايلو په ذريعه کړې دي تر اوسه ئې دری زره د کهکشان لاری کشف کړی او د يوې علمي فرضيې پر اساس موږ ته تر او را نژدې کهکشان پر دومره مسافه لری واقع دی، چې رڼا (نور) ئې په ۸۵۰ زره کاله کې را رسېږي او ليری ئې ۱۴۰ مليونه [نوری کالونه] زموږ څخه ليری دی .

دا نه په دې بد نه وی چې يو ځل د نور له چټکتيا څخه هم خبر سی . نور په يوه ثانيه کې ۳۰۰ زره کيلو متره فاصله طی کوی او يدي خلا کې د بېر داسې ستوري ستة چې نور ئې د مځکې خوا ته را په له سوی پسله مليونو کلو څخه مځکې ته را رسېدلی دی خو هغه ستوري وخت لا خپل عمر له لاسه ور کړی او په فضا کې متلاشي سويدی .

د علمي وېش له مخې بايد لوډه پر اخته يا کې دوه ډول ستوري ثوابت او مېږی چې له ځان څخه رڼا ور کوی او دوهم هغه سيارات دی چې د ځانه رڼا نلری بلکه د ثوابتو څخه رڼا اخلي او د هغو پر مدار په معين وخت کې را څرخي .

د دې مثال په لمر او زموږ مځکه ونيسو . لمر ثابت دی او مځکه يوه سياره ده او د مځکې په ډول نور سيارات هم ستة چې پر دغه لمر را څرخي چې زموږ مځکه ئې رڼا کړېده او دې ته او شمسي نظام وائي .

[نور په ۲۶ مخ کې]

«د ۲۵ مخ پاته برخه»

همدا دول لکه زموږ شمسي نظام په کروړونو نظامونو هم سته چې پرځینو اېز او پرځینو خورا ډېر ستوري راڅرخي.

بخپله دا ثوابت هم حرکت لري خو دا څرخ ئې پر بل بوه نه وي بلکه پر ځان ئې دی. خو سیارات دوه دوله څرخ لري: یو دا چې پر ځان راڅرخي بل دا چې پر ثوابتو کرزي. لکه ځمکه چې پر ځان راڅرخي او د هغه څخه شپه او ورځ پیدا کېږي او چې پر لمر راڅرخي نو د کال موسمونه ځنې پیدا کېږي. د سیاراتو دا څرخېدل هم د لمر په فاصله کې د خپل موقعیت په لحاظ توپیر لري.

همدغه دول ددې سیاراتو لیرې والی او نژدې والی د لمر په نسبت د ژوندیو شیانو په پیدا ښت کې تاثیر لري.

پر هغه ځای چې د شرایطو سره برابر واقع شوي وي مثلاً د لمر رونا او حرارت برابر ور رسیږي نو هلته ژوند موجود پېدا شي او که لمر نه ډېر ور نژدې یا لیرې وي نو هلته د ډېرې کرمۍ یا یخنی څخه ژوند نشي پیدا کېدلای، زموږ ځمکه د لمر په مخ کې پر ښه ځای واقع ده نو ځکه ژوند پکښې شته، همدغه دول علمي فرضیې داهم وائي چې په ډېر یخ کې به هم ژوند وي. ولې په مشتري کې چې لمر نه ډېره نژدې ده ژوند نشي کېدلای.

داڅ دستورو په باره کې یو لنډ معلومات.

[دغروال ژباړه]

[د ۲۴ مخ پاته برخه]

اپکن نامې زموږ سوځل اپونتوب بولي او خپل دا [فېشن] ا.

---

د پوهانو نظریه:

## وجدان

اې فضیلته! ته پېله د خبرو په عالم کې، بل ځای وجود نلرې.

[بروتوس]

با اخلاقه وګړي تل د پاک وجدان څښتنان دي.

[اسمایلز]

هغه څوک چې بله هر کار کې د خپل وجدان تابع وي، هیڅ وخت نه سترې کېږي او له ژوند څخه نه غمګینه او خواشیني کېږي.

[اپکن]

وجدان تل حقیقت خلق کوي. [کې ار ککار]

[۳]

## د شګوفې وداع

زه پښه هیڅکله ستا د وداع ساعت هېر نه کرم او تل بې یادوم ولې چې ستا د وداع ساعت نه یوازې اوښکو او نه د حرمان یاد دی بلکه د ګلو د باران یاد دی.

هغه ساعت به هېر نه کرم چې ښکلا دې د سپین لباس ونل او په خپل شنه لباس کې اوښدل، ستا ژوند ومانه د هغه ژوند سبق دی چې په شرف سره شروع سي او په شرف بشپړ سي.

هر کله بیا په خوښۍ او شرف راسې، اې د ژوند د موسم فاتحې! چې غوړېدلې دې خندا وه او رژېدلې دې ښکلا.

ښاغلي پاڼینو

# «چه» ولیکو- که «چې»؟

ښـاغلو......

په «اصلاح» کې چې مو [زموږ ژبې] ته د اصلاح له پاره برخه ور کړېده، ډېر د قدر وړ کار دی.

ولې پر ځای دا دی چې په پښتو کې جنجالي مسئلې ورځ په ورځ ډېرې سي، ښه به داوي چې هر څوك د خپلې ژبې په بوهې له مخې څخه پر ورځنیو اوچاره ئې وکړي.

۱- او مرنۍ جنجالي موضوع چې په اصلاح کې بحث پر سوي دی، هغه د [چه] او [چې] لیکنه ده. په کندهار کې ئې دوهم صورت، پسله څو مجلسو څخه غوره بلل سوی دی. دا ځکه چې یو خو پر تلفظ برابر دی او بل ئې په ژبه کې کومه منفي اغیزه نه ښندله. یعنې اشتباه او التباس ئې نه پېښاوه.

[الف] مګر ښاغلي خادم په اصلاح کې نور څه هم لیکلي دي، او د «چه- چې» پر موضوع سربېره د پښتو لیکنې پر تاریخ او سرنوشت باندي هم ږغېدلی دی مثلاً لیکي چې: «... پښتو د عربي په خط تر فارسي ډېره وروسته لیکل سوېده... » مګر د دغې خبرې د حمایې او اثبات له پاره ئې دلیل نښ یو روایت راوړی دی. خو که موږ لږ څه فکر وکو او یو څو کرچنۍ یوښتنې و یوښتو، نو به موضوع په خپله او ښه تره څرګنده سي، دا سي چې د اسلام په ابتداء کې، ولې، پر افغانستان او با خصوصاً پر غور او شاوخوا باندي ئې چا حکومت کـاوه؟

آیا امیر پولاد او امیر کروړ پخپلو دربارو کې له کومه خطه څخه کار اخستی؟ دغه خط به خروښتی و او که به ئې هیڅ نه درلودی؟؟

په هره نو که، که څوك و یو رتمیو یوښتنو ته مخالف جوابونه ور کړي، نو هاله بیا د سوري کورنۍ پر خط باندي ږغېدله یوه بېله لیکنه غواړي او که دغه سوالي پادوني کـفایت کوي.

[ب] ته یوهېږم چې په عربي رسم الخط کې د پښتو یا فارسي د مخه والي پر «چه» او «چې» پا نورو املائي موضوعاتو باندي څه اغیزه لري؟ یعنې مطلب او مقصد مې څه و؟

۲- په نو موړي مقاله کې لیکل سوي دي «پښتو که څېل کوم قو تېلك خط درلودی نو قوي احتمال دادی چې دغه خط به «خروښتی» و، چې په دغو رختو کې د پښتو د کلچر د مدافعینو د هېر کو سره خاوري سوی و.

الف- لومړی خروښتی د پښتو خط کېدل خورا مهمه موضوع ده، نو که څوك دا سي نظر په واري باید هغه ثابته کړای سي ولې چې تشه احتمالي پادونه ئې د لوستونکو لوهه او تنده نه ورماتوي حتی په دغه باره کې ډېري دا سي یوښتنې ور ته پیدا کېږي چې: دغه خط کله موجود و؟ څرنګه خط و؟ چېرې او له کومه پیدا سوی و؟ ولې د پښتو خط ګڼل کېږي؟ مګر که ئې د پـسوي احتمالي

عقیدې په تو که صرف یادونه وسي او هغه وخت به دغه کوم عامي ارزښت ونه لري .

ب. بله مهمه یادونه د فونټیك د کلمې استعمال دی چې تاسې ئې په یوزنني رانقل سوي عبارت کې لیدلای سيء .

مطلب داچې د خروښتي یا «خروستهي» اصلاً خروښتهي » خط باد پښتو مرخط یو فونټیك خط بللهغیږ د منلو وړ نه دئ ځکه چې موږ د هیڅ یوې اوسنۍ ژبې لپاره لا داسې فونټیك خط نه لرو چې په وروځنیو لیکنو کې دې کار ځنې واخستل سي او پخوانۍ ژبې خو لا هاخوا نه پرېږدئ . دالاځه حتی فونټیك خط هم د هرې ژبې لپاره نسته .

۳- ښاغلی لیکوالکی و دغه د پښتو اوسنی عربي رسم الخط نه، د انګلیسي پر لاتیني خط باندې ترجیح ور کوی او داسې کاږي چې: « پښتو په دغه موجوده خط سره دلیکلو له حیثه د مشکلاتو سره مخامخ ده . مګر دا مشکلات دومره نه دي لکه انګرېزي ته چې د لاتین د خط په لیکلو کې ور پېښ ی. یعني که پښتو بدې موجوده خط کې د انګرېزي د موجوده خط سره مقایسه کړو، نو د پښتو بدې خط سره زده کړه او اوستل د انګرېزي دهغې زده کړې او اوستلو څخه چې د هغې پخپل خط کې کېږي، ډېر آسان کار دی .

الف: د انګلیسانو موجوده خط د دوی د محافظه کارۍ یو څرګند مثال دیء ولې چې دغه د اوسنی خط انګلیسي ئې، تلفظ انګلیسي نه دهء . بلکه پخوانی ده . مثلاً: نائت، آفن، نایف، پخوا دغسې نغت، آفتن، کنایف .. ویل کېدل . مګر اوس د پخوا په شان لیکل کېږي، ولې ویل کېږي: نائټ آفن، نایف... انګلیسان اوس هم پر دې ټینګ دي چې باید په املا کې تغییر رانه وستل سي، مګر اتازونیوال بیا د دوی غوندې فکر نه کوی او هغوی په ځینو هغو کلماتو کې چې کومه اشتباه او التباس نه پېښوي، تغییر راوستلی دی مثلاً کانکشن، تیټر، کلر او نور داسې اوس د کنکشن تیټر، کلر په تو که کاږي .

په هرصورت خو ځینې انګلیسي کلمې لکه ... کام، پلا، نایت غوندې کېښل د لاتیني خط ګناه نه ده، لکه ښاغلی لیکوالکی چې لاس پورې نیولی دی . ځکه چې دغسې اولې کلمې په داغه خط هغسې کښل کېدای سي لکه ویل کېږي چې مثلاً ... Nite,Plaw,Cam اوس نو تاسې ووایاست چې آیا نقص چېرې دی؟ په خط کې که په خلګو کې؟

ب: داچې په زده کړه او اوستنه کې هم پښتو د عربي خط له مخې څخه تر انګلیسي غوره او آسانه بلل سوې ده، نو زه پخپل وار سره واضحاً دا لیکم چې دغه ترجیح او خوښې بې واقعیته ده . مثلاً په پښتو کې داسې د یرې کلمې سته چې لیکل کېږي یو راز مګر ویېنګ او معناوې ئې سره بېلې دي لکه : «اری، لاره، کوچ ...» چې دغه لاندې تلفظونه او معناوې لري د «اری» کلمې لیکنې وینې او معناوې :-

۱- اری - اري Lari «دارده» اري «داری» Lare : اری «داربد» Laray .

۲- اری «شکمبه» .

۳- اری «لیری، دور» .

۴- اری «کښتی» اله، ار، څخه» .

٥- لړۍ «شکست، ماتېدل».

د «لاره» کلمې لیکنې، او ویې او معناوې:-

١- لاره Laara آهنګ، سرود، نغمه.

٢- لاره Laara مېداشت.

٣- لاره Laara توسط داس «داله داوړه» څخه.

٤- لاره Laara راه.

د «کوچ» کلمې کښنې، او ویې او معناوې:-

١- کوچ Kwoch کوچۍ، مسکه.

٢- کوچ Kawch میان تهی، خالی.

٣- کوچ Kuch د سپي لپاره.

٤- کوچ Koach نقل مکان.

دغه راز کلمې په پښتو کې خورا ډېرې دي او د خپل قناعت د حاصلولو لپاره کولای شي چې د ښاغلي حبیبي د «پښتو متشابهات» مضمون وګوري، چې ترمخه د اصلاح په ورځپاڼه کې خپور شوی دی. مګر په انګلیسي کې نو موږ ابژه مثالونه هم نه شو پیدا کولای چې په هغو کې دې څو داسې کلمې چې مختلف تلفظونه او بېلې معناوې ولري یو شانې وکښل شي، لکه په پښتو کې چې کښل کېږي.

ج: په انګلیسي کې اوږده او لنډ واولي اشکال دواړه سته که څه هم په کښنه کې بسیط وي یا ترکیبي. مګر په پښتو کې خو دا ښکاره ده چې لنډ واولونه لکه: زور، زېر، زورکي او پېښ بشپړ نشته. خو څه چې اوږده واولونه دي هم پوره او داسې نه دي چې تلفظ دې واضح وي. بل دا چې په پښتو کې د انګلیسي په شانې له واولي مخنیو څخه داسې کوم ترکیبي صورت نشته چې یو بل واولي آواز دې معرفي کړي، که څه هم

د بېلتانګ وي یا بسیط واول. دغه رنګه په پښتو کې د انګلیسي غوندې د سیمیو او لو (سیمي کانسو-نېنټو) لپاره داسې نخښې نشته چې هغه دې اسـه واولو څخه بېلې وي.

ښکاره ده چې د انګلیسي لاتیني الفابیت د پښتو تر عربي الفباء ډېر سرلری، مګر بیا نو هم پوره او بشپړ نه شو بللای ځکه چې دغه الفابیت په خپله حتی د انګلیسي لپاره هم فونیمیک نه دی او فونټیک خو لا څه چېري. مګر که موږ له لاتیني خط څخه د انګلیسي اختصاص اېسته کړو؛ نو بیا داسې زغېدل چې لاتیني خط نارسا او د ژبې د لیکنې استعداد نه لري، ډېر لېري ایسي. ولې چې نننیو لویو فونټیک الفباوو په لاتیني خط کې ترتیب شوي دي، چې ډېره مشهوره یې بین المللي صوتي الفباء [IPA] ده.

٤- تر ټولو اوږدې مقدمې وروسته د عنوان پر موضوع باندې یو څه کښل شوي دي چې پېرف-ګراف یې داسې پیل کېږي: «په خط کې مهم ټکی دا نه دي چې د کلمې د هرې صوتي برخې د پاره دې یوه توری کټ مټ موجود وي، بلکه مهمه یې دا ده چې د هرې کلمې د پاره چې کوم نقش او تصویر موجود دی آیا دا تصویر څو د کوم بل تلفظ په معنی د بلې کلمې د اظهار احتمال نه لري؟»

الف. دا سمه خبره ده چې: په خط کې دا مهم ټکی نه دی چې د هرې صوتي برخې او صوتي تغییر لپاره دې علامه یوه اېښودل شوې دي.

ولې چې د خط تر ټولو مهمې ګړانې (ترټکل یې د پوهېدې) ډېر ېږي. لکه څرنګه چې دغه سمه

ایسې همغوني دا غلطهایسې چې په ژبه کې دهرې صوتي برخې او صوتي تعبیر لپاره نخښه نه ایښوول شوې ـ یې مهم تښکی نه دی.

مطلب دا چې هره پښته باید د خپل موقعیت له مخې ځځه وفهمول شي که چیرې کومه صوتي برخه یو کوم صوتي تغییر د تفرق او پېژندنې وړ وي باید ترتوانه پهرزې ئې تمیز و کړه شي او که ئې مشکلات نه پېښول او څه فرق ئې نه کاوه خو نو لا په هم هغه توګه.

ب- داو د رانقل شوي عبارت دوهمه برخه چې دلیکوونکي نه اهمیت ورې داده: باید یو شکل د دو باخو تلفظو احتمال ونه لري.

که څه هم په پښتو کې دغه احتمالات نسبتاً زیات دي مګر د «چه» او «چې» لپاره ئې ذکر بې ضرر ورنه ایسي ځکه چې د دغې کلمې «ه» په «ي» سره اړول د کوم بل تلفظ احتمال نه پیدا کوي. یعنې د «چه» پر ځای باندې «چې» کښل خو وهانه کوم بل راز ویښنګ نه را پیدا وي او ښاغلي لیکوونکي ئې هم کوم ذکر نه دی کړی او نتیجه ئې داده چې د «چه» لیکل د «چې» په توګه څه پروا نه لري ولې چې کوم نقص نه وارد وي.

ج- لیکوونکي په پورتنۍ سوالیې پسې متصل لیکي [راغلو «چه» نه ممدغه صورت د مماغه بیانیه کلمې اظهار دی چې د پښتو په ژبه کې مختلفې لهجې لري، لکه «چې» «چي» «شي» «څه» «چه» که موږ وغواړو چه کلمه پر فرق تهیك صورت برابره کړو، نو مشکله ده چې یو داسې صورت غوره کړو چې له چکړو او جنجالو نه ورباندې خلاص شو.]

د پښتو لیك له ورځنۍ جریانه څخه خو داسې ښکاریږي چې د «چه» مختلفې لهجوې شخړې لا پخوا دي چې زه هیڅ نه یم په خبر فیصله شوي دي، او اوسنۍ شخړه یوازې د «چه» او «چې» ترمنځ ده. نو نه پوهیږم چې پورتنۍ یادونه او د «چي» د مختلفو صورتو ذکر د څه لپاره وُ؟ آیا د دې لپاره وُ چې که «چه» د «چې» په توګه کښل کیږي نو هغه نورې لهجې هم باید ترمودی «چي» «څه» «شي» ... صورتو نه را ژوندي کړي؟

د- که چیرې «چې» «چي» په توګه و کښل شي یعنې په مجهوله «ي»، نو د ښاغلي لیکوال هغه خبره چې: «... بلکه مهمه ئې داده چې دهرې کلمې دپاره چې کوم نقش او تصویر موجود دی، کوم بل تلفظ یعنې د بلې کلمې د اظهار احتمال خو نه لري؟» مناسبت او واقعیت پیدا کوي. ولې چې په مجهوله یې سره د «چې» کلمه د دوو کلمو «چه» او «ني» یو ترکیبي مخفف صورت هم دی، چې په اشعارو او حتی په محاوره کې هم ډېر استعمالیږي.

زموږ لپاره یوه ډېره مهمه وظیفه په ژبه کې مطالعه ده او بیله ژبپوهنې څخه په زموږ دغسې هر کار کوم ارزښت و نه لري مثلاً په یوه مجلس کې چې د «چه» او «چې» پر موضوع باندې خبرې روانې وې، یو سړي، چې هیڅ د اشتراك توقع نه ځنې کېدله، په ډېر متانت سره داسې وویل: [د مجلس منتظره او ترسیم].

تاسې اوس په دغه «چه» څه کوی چې ځینې واپاست په «ي» په ئې کاږو او څوك پیا پردي

پاندې ئينګې پاملت چې پهٔ؟ پهٔ
«هٔ» دې وي ؟

پهٔ نو... صاحب! تاسې څهٔ پکښې وايلات، چې پايد څرنګه دي ؟

څرنګه ئې داسې دهٔ چې ځای ځای به ئې په «هٔ» سره کاږو او ځای ځای به ئې په «ی» سره؟

[هیښتیا او تبسم] څرنګه؟ یعنې چیرې به ئې په «هٔ» کاږو او چیرې به ئې په «ی» سره!

په «هٔ» به ئې په هغو کلمو کې کاږو چې هغه په «ی» سره نهٔ کښل کېږي او په «ی» هغه چې په «هٔ» سره نهٔ راځي؟

[هیښتیا او اندېښنې...] مثلاً په څهٔ راز کلمو کې ؟

پداسې کلمو کې به ئې په «هٔ» سره کاږو، لکه: غرڅه، مچه خوڅه، پچه، کرچه، تربوچه الوچه ...

[چکچکې او خندا..] ډېر ښه صاحب! په «ی» به ئې چیرې کاږو ؟

دغه پسې کلمې به نو ای په «ی» سره کاږو، مثلاً: چیرې، کرچې لاچي، چینار، چڼې، کروانچې، [وهوا، چکچکې...] څهٔ ښه بې طرفه فیصله، چزد هیچا به کړپه نهٔ ده.

پوهٔ نهٔ شو داسې پښتو ځنې وکړو ... صاحبا! تاسې وویل چې: کرچه، خوڅه، مچه او غرڅه غوندې کلمات باوله په «هٔ» سره کاږو، مګر پښته خو داسې ده چې په «ی» سره هم کښل کېږي، لکه: کرچې خوڅې، مچې، غرڅې... نو بیا به ئې چاره څرنګه کړو؟

هوا ښه وایې، زما بیا و دغو ته هیڅ فکر نهٔ و. خیر خو ممکنه ئې داده چې په دراړو یعنې هم ئې په «هٔ» او هم ئې په «ی» سره وکاږو.

دغه مسئله پښتو او نېږه سره مګر مثلاً او نه ئې پهٔ بوه او بل شکل سره او رهم وجود لري مثلاً په کندهار کې بر دي د پرې خبرې وسوي چې «کښې» هرچیرې د «کې» پـه تو که ویل کېږي، او کښل کېږي ولې هغسې؟ ددې معنا داده وه چې که هرچیرې د «ک» او «ښ» زغو ته څنګه پر څنګ سره راغلي وه نو هورې به ئې «ښ» ځنې ایسته کېږي، لکه پـه «کښېښود» او «پکښې» کې چې «کېښودهٔ» او «پکې» سوېدي مګر برعکس داده نورې ئې و بېلګې او تلفظ لري یعنې هغسې ویل کېږي لکه کښل کېږي چې، بل داسې نهٔ ده پېښ سوې چې بو کاڼو ئېتها دي لیکل کېږي نهٔ مګر ویل کېږي دي او برعکس ئې لا هو.

په هرحال که څود «چه» او «چې» ترهغه پېره ګراف ور وسته چې نادوه ځاېه را نقل کړي دي، د مقدمې په شانې پسې او زده خاتمه پسې راځي ... اوددې لپاره چې «چه» په «چې» سره ونهٔ کښل سي او د پوښتنې په تو که داسې ایکای کېږي: «.. پېلهٔ ضرورت د پښتو په املاء کې دوی صورت پیدا کول څهٔ ضرورت لري؟»

د «چه» ایکنه د «چې» پـه تو که، څادو نی در نهٔ موضوع نهٔ ده، لکه و بتاغلي خادم نهٔ چې ابسهداي ده. که پوراز و کښل سي که بل راز خو د پښتو پر ماهیت باندې کوم تاثیر نهٔ لري. هغه تلفظ چې د دوو دې کلمې لپاره مته په «چه» شکل کې هم هغسې دی لکه په «چې» کې او په «چې» کې بیا هغسې لکه په «چه» کې، خـو داچې د «چه» صورت ئې پـه «چې» سره اړول سوی دي، بوعلت ئې دادی چې ددغې کلمې ور وستنۍ

آواز داسې نه دی لکه د پښتو [ګه، ځه، څه] هغې چې دی او باید کښې ئې ولې سره ورته وی؟ یعنې څرنګه چې کېدای شي باید داسې نه وی لکه د فارسي «چه» او «که» چې کښې ئې یو راز وینګ ئې یل راز وی . دغسې ئې هم [به چه؟] او [چې] فرق سره کوی .

بیا هم وایم «چه» که هر شکل و کښل شي د ژبې پر ماهیت باندې څه اغیزه نه لري او دا به دې سره ښه وای چې لیکوونکي خپله یو رنګه یو ښتنه د هغو کلماتو و لیکلو ته را ودې وای چې تغییر ئې د ژبې پر ماهیت باندې تأثیر کوی ، او هیله ده چې نوموړی ښاغلی د دغسو بې تأثیرو تغییراتو پر ځای باندې د هغو اړ ښتنو او اړوتو ته متوجه شي چې تغییر ئې د ژبې پر ماهیت باندې اغیزې ښندی ، لکه : د [سول] کښېنه د [شو] (جمع) په توګه .

د [بر] لیکنه د [به] په توګه
د [وسول] کښېنه د [وشو] (جمع) په توګه .
د [ولاړ] لیکنه د [لاړ] په توګه .

د [ددوی دو] کښېنه د [دوی دو] (جمع) په توګه .
د [کښېښوو ـ ه] لیکنه د [کېښوده] په توګه .

دغه او داسې نور صورتونه ـ ته چې که اصلاح او سمـ رتونه ئې واضح شي ، ژبه به له بې نظمی او هرج ومرج څخه را وژغورله شي .

د نوموړی مقالې پـه وروستـه کې د [چهارچی] موضوع تر [ګ] وری رسېدلې ده . داسې چې دغه توری باید په دوه ډوله [ګ] و کښل شي او که په یوه ډول او کړی [ګ] سره ؟ زه په خپله په دغو دوو شکلو کې د لوهرنی دوه ډوله والا [ګ] برخوا یم ځکه چې دغو شکل لکه زغ ئې د پښتو او فارسی ژبو ترمنځ مشترک دی . ښائی څوک به وائی چې باید د پښتو او فارسی [ګ] تورو ترمنځ فرق ځله وشي مګر دغه راز دلیل خو ما ته هر ځای نه ایسی ولې چې د پښتو او فارسي ترمنځ واړه هغه توری چې ږغونه ئې سره مشترک دی ، دوی هم یو شانی دی ، لکه : پ ، چ ، ژ ، س ، ل او ولې باید دغه یو مشترک ږغ په یولو شکلو سره و کښل شي ؟ که ئې بیا هم څوک د یولو والی برخواری ، نو دغـه اختلاف یوازی بدې بـوه توری کې کفایت نه کوی او باید و تولی الفباء ته ور کش شي څرنګه ؟ هر که یه ؟

هوښکوره ، چې زه د لیکنه د ښاغلی خادم پر مقالې باندې کوم انتقاد و نـه کړې ! ولې ناسې یوه پېژی ، چې پر مختلفو موضوعاتو بانـدې د یولو یولو کسانو له خوا څخه څه نه څه اختلاف پیدا کېږی . نوماهم په دغې لیکنې کې نش د نوموړی ښاغلی لـه هغو او ګڼو سره خپل غیر موافقت او نه ملګرتیا څرګنده کړېده ، خصوصاً بیا پر لانیښی الک باندې چې زه ئې نیمګ پرخوا یم .

[پښتې خبری]

## خوشبختی

خوشبختی هغو خلکو ته مخ کوی چې د نـورو خلکو د نېکمرغه کېدلو د پاره کوښښ کوی . [آبرو بل]

## زړه توب

دزړه تیا د وخت خوشبختی با بد بختی زموږ د تېرو وختو له کړو څخه پیدا کېږی . [سنت بورو]

سلیمان «لایق»

# په جنون کې

## به لا څـــه وي؟

خاندې اېوتې چې په جنون کې به لا څه وي؟
ګوره چې د عشق په موج خون کې به لا څه وي؟

مست چې د ساقي په یوه عتاب پیاله نسکوره کړه
خدا زده د زاهد په شبخون کې به لا څه وي؟

خام په یوه جلوه د نرګو ناز بې‌سده کړي دي
ګوره چې د مینې په ترون کې به لا څه وي؟

موږ نه دزړونه لا زاړه غمونه پاتې دي
خدای زده چې د عصر نوي بون کې به لا څه وي؟

توري چې په سپینه ژبه سر دانسان لیري که
ګوره دانوم په سره ازمون کې به لا څه وي؟

سر زما د قوم همېشه نوروته خاوري شو
آیا چې په برخه د پښتون کې به لا څه وي؟

خوځې زلزلې بیا د نړۍ په تنابونو کې
ګوره چپاوونو د ګردون کې به لا څه وي؟

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR , AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

(AUGUST)1962

GOVERNMENTAL PRESS